د نوې ژبپوهنې په رڼا کې

# لیکلار ښود

## (یوه پښتو – کره پښتو)

پوهاند ډاکتر م. ا. زیار

۱۳۸۵

# بسم الله الرحمن الرحيم

## ليکي پوهه:


ليکی : ليکلار ښود «يوه پښتو _ ګره پښتو»

ليکوال : پوهاند دوکتور مجاور احمد زيار

خپرندوی : د ساپي پښتو څېړنې او پراختيا مرکز

چاپشمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

چاپنېټه : پسرلی۱۳۸۵/ 2006 (تر يونيم کال څنډ وروسته)

دچاپ ربښتې له ليکوال او خپرندوی سره خوندي دي ،

دغه لاربنود سم له لاسه د يوې – کره ليکلارې مينه والو ته هممهال د ساپي، ټول افغان، بېنوا ،سمسور ،هيواداو... انټرنېټ پاڼو له لارې وړاندې کېږي.که چا پرې د چاپ لوربينه کوله، له ما سره به هرومرو سلا کوي. (زيار)

**ځوان کمپيوټري پښتني پښت ته**
**چې د همدوی په هڅونه دغه لاربنود وکښل شو.**

# ننګونه

یوازې اکاډېمیک پښتو ژبپوهان له لوړترین زده کړېز لاسوند او اړوند څېړنیز رېکارډ سره دا رښتنه درلودای شي چې په لا زیاتو پیاوړو ژبپوهنیزو آرونو، لاسوندونو او پروسیجرونو دا لاربښود راوننګوي، نه لکه زموږ توکمپوه ډاکټر پالوال چې له ((معیاري پښتو)) سره یې دغه یو اړواړ هم رانغښتی نه دی !

**A**
**Guide of Standard Pashto**

پارسي ځېلې پښتو:
(څو، ترڅو) د (چې) پرځای.
د کابل څخه کتنه - ملاتړ- دفاع-
یادونه - ستاینه...(څخه؟)
اردو- انګرېزي ځېلې:
چېرې چې، څوک چې، کوم چې...
په ډېر شمېرکې، په مشرۍ کې...
(کې؟) لاپته ،لادرکه (ترې تم)...

**Prof. Dr. M. A. Zyar**

## يوه پښتو ـ ګړه پښتو

# ليکلارښود

پيليزه:
دا خبره چې پښتو ولې لا تراوسه د نورو يادو نړيوالو او بيا ګاونډو ژبو پرخلاف په سمه توګه يوه يوازينۍ کره ليکنۍ بڼه نه لري او ډيری ليکوال يې لا تراوسه د خپل خپل سيمه ييز ګړدود ، په بله وينا ، د خپلې سيمه ييزې ګړنۍ پښتو ښکارندويي کوي او په دې توګه دغې ژبې لا په سمه توګه له ګړني او ګړدودي دريځه يوه کره ليکني ژبني دريخ ته لوړتيا نه ده موندلې، دك ودليل يې دا دی چې دغې ژبې لا هاغومره علمي - فرهنګي پرمختګ نه دی کړی او له دې سره ورته هغومره اړتيا هم پيدا شوې او ننګېرل شوې نه ده او چې دغه ژبه بيا په علمي - فرهنګي سيالۍ کې ولې پاتې راغلې، لاسوند يې دا دی چې د ويونکې «پښتني» ټولنې ټوليز بشپړتيايي بهير يې وروسته پاتې دی .

له دې لامله دا کومه هېښنده او نادوده پېښه نه ده، څومره خنډونه او کړکېچونه چې د پښتني ټولنې د ټولنيز بشپړتيايي بهير مخې ته پراته دي ، هماغومره يې د ژبې او فرهنګي مخبنايي بهير مخې ته هم پراته دي .
موږ په غړولو سترګو وينو چې پښتني ټولنې لا په ټوله نومهالې مانا له بې شمېرو خپلونو او ټبرونو څخه يوه يوازيني ولس (ملت) ته لوړتيا او بشپړتيا موندلې نه ده، نو څنګه کېدلای شي، ژبه يې په رښتينه مانا له بېلابېلو بې شمېرو ټبرنيو او سيمه ييزو ګړدودونو څخه يوې يوازينۍ ژبنۍ او بيا کره ليکنۍ بڼې ته لوړتيا ومومي؟

هو، هماغسې چې ټولنيز بشپړتيايي بهيرونه له آګاهانه هاندوهڅو سره ګړندتيا او پراختيا مومي، دغسې ورسره تړلي مخبنايي هغه هم په آګاهانه او ځانخبرې توګه ګړندي کېدای شي. همدا خبره وه چې د افغاني، په بله وينا، پښتني ټولنې د وروستيو ټولنيزو او بيا فرهنګي پرمختياوو له يوې واريزې چټکتيا سره د يوې کره ليکنۍ او خپرنۍ پښتو ځنډن او خنډن بهير هم يو واريز غورځنګ ته راګډ شو، پراختيا او پرمختيا يې وموندله او دا دی، له ښه مرغه په ټول شور و زور پرمخ درومي او پرله پسې بشپړتيايي پړاوونه وهي.

نورې دا ببولالې زړې شوي دي چې هر څه دې د مهال عادي بهير ته پرېښوول شي. که دغه آر د منلو وړ واي، نو ولې به دا دومره ټولنيز او فرهنگي اوړونونه او غورځنگونه رامنځته کېدل. رښتيني روښاندي پښتانه اوس په دې پوره پوه شوي چې په گردو بېخبنايي او مخبنايي ډگرو کې يې له نورې پرمختللې نړۍ سره سيالي او هملاري په آگاهانه او ځانخبرو هاندوهڅو سره کېدون موندلای شي او په دغه لړ کې د يوې داسې کره ليکنۍ پښتو په سمبالونه چې په دغه سيالۍ او هملارۍ کې يې رښتيني مرستندويه شي.

د يوې يوازينۍ کره پښتو د رښتيايني او سمبالونې لپاره چې کومې پرله غښتې ژبپوهنيزې هلې ځلې په وروستيو دوه - درو لسيزو کې ترسره شوې، هغه ټولې د ليکونکي له خوا پر خپل خپل مهال څېړل شوې او ارزول شوې او له بېلابېلو لارو د زده کړه والو او ليکوالو د گټې اخېستنې لپاره وړاندې شوې دي، چې د بشپړې کتابي بڼې«پښتو ليکلار» تر لومړي چاپ (۱۳۶۰ ل) راوروسته يې دغه اوسنی لاربنود د هغو گردو ليکوالو، پوهانو او زده کړه والو د پرله پسې غوښتنو او سپارښتنو يو غبرگون دی چې د جنگ وجهالت ځپلي هيواد پرېښوونې او يا يې بيا رغونې ته اړ شوي او د پښتو ليکلار په گډون يې بشپړ کتابتونونه تر شا پرې اېښي دي. دا هغه پښتو مين پښتانه دي چې د خپلې ژبې او ژبني فرهنگ رښتينی پرمختگ او د نړيوالې علمي - تخنيکي سيالۍ لپاره يې جوگه کېدنه د دغې ژبې ليکنی يووالی او کره والی لومړنی او بنسټيز آر وآړ (اصل و شرط) گڼي او همزمان يې د ملي رغښت او يووالي پيلامه.

د هغو ښاغلو او آغلو د پوهاوي لپاره چې د يوې - کره ليکنۍ پښتو په اړه ورته دغه ټولې ځانگيزې علمي هاندو هڅې بيا هم سمې او اړينې نه برېښي، ځانگړې او خپلسري يې بولي، پر همدومره غبرگون بسنه کوو چې دغه ربړه او ټولې ورته ژبنۍ ربړې او مسالې نورې د کابل پښتو ټولنې يا پېښور پښتو اکېډېمۍ د زاړه نا پوهنيز دود «ټولپوښتنې (رېفرينډم)» پرځای په نوې ژبپوهنه هوارېدای شي او يوازې په ژبپوهانو اړه لري. بيا هم دغه اوسنی لاربنود د تېرو هغو غونډې د هماغې ژبپوهنيزې چلند لارې (پروسيجر) پر بنسټ رغېدلی چې پر ۱۳۵۵ل کال د ارواښاد علامه حبيبي تر مشرۍ لاندې د يو شمېر دودېزو او نويو ژبپوهانو او ليکوالو په يوه غونډه کې لاسليك شوی او د هماغه کال د لړم په مياشت کې د پښتو ټولنې تر پخلي او منښتې وروسته د ۱۳۵۶ ل په لومړيو کې اړوند سرکاري اورگان «زيري» او ورپسې بياد پښتوپرمختيا او پياوړتيادوې مياشتنۍ«

پلوشې)) خپور کړی وو.
نوې، خپلاسي رغاونې یا نوېزونه (نیولوجېزمونه)چې د یوې - کره لیکنۍ پښتو له رغندو ټوکونو (اجزاوو) څخه ګڼل کېږي، هم همداسې یوه ورته ژبپوهنیزه ربړه ده او تر ټولو مخکې په ژبپوهانو اړه لري او د هرې علمي، تخنیکي یا انفارماتیکي څانګې پوهان هم خپلې اړوندې نومونې بې د ژبپوهانو او په ځانګړې توګه، ویېپوهانو (لېکزیکولوجېستانو) له لارښوونې رغولای او ټاکلای نه شي.

زه په دغو ژبنیو ربړو او سکالوو کې له اوږدې مخینې (سابقې) او ازمېښت سره سره بیا هم دغه لارښود په ټوله مانا کوم وروستنی او همېشنی لارښود یا د چا خبره کومه کاڼي کرښه نه ګڼم، ځکه یو خوا د پښتو ټوله ګړنۍ او لیکنۍ شتمني لا په بشپړ ډول رابرسېره شوې او راخوندي شوې نه ده او بل خوا یې اوسنۍ ګړندۍ خپرنۍ او فرهنګي پراختیا او پرمختیا پرله پسې نوې نوې څنډونه او لر لیدونه پرمخ راپرانیزي او له دې سره یې اړوند لارښود هم زاز و ادلون بدلون غواړي. ان په همدغه اوسني لارښود کې د یوه لړ ګړدودي ځېلونو (وارینټونو) امرنه (انتخاب) او ټاکنه سم له لاسه وړاندیزي بڼه لري . لکه واخلې د (سول، سته ...) او (شول، شته...) تر منځ، یا د (بود - بودند) د انډول په توګه د (و، وو) او (وو، ول، وه)... تر منځ که څه هم د یاد شوي علمي پروسیجر له مخې د وروستنیو ځېلونو کره والی په ګوته شوی او زباد شوی دی . د نیولو جیزمونو په برخه کې یې هم همداسې درواخله .
د دغو ټولو خبرو په پای کې دا هم له پامه غورځول په کار نه دي چې ژبه د یوې ټولنیزې ښکارندې (پدیدې) او فرهنګي اربې په توګه تل په ادلون بدلون کې ده او له دې سره یې رغاونیز (فونېټیکي او ګرامري) او ویېز اکر بکر هم اوښتونکی او بدلېدونکی دی او کره لیکنۍ بڼه یې هم ورسره هرومرو پر یوه اکر پاتېدای نه شي.

بلخوا ژبپوهنه د ژبې او ژبنیو سکالوو د پوهنې په توګه له ټولو پرتلیزو (نسبي) سانټیفیکو آرونو سره بیا هم له ټولنیزو پوهنو څخه ګڼل کېږي او په دې ډول یې د نورو سکالوو په څېر معیاري دا هم د تل لپاره نا لاسوهلې پاتې کېدای نه شي . همدا خبره ده چې ان په وتلیو اروپایي ژبو، لکه انګرېزۍ، فرانسۍ او جرمنۍ کې هم دغه بهیر لا تراوسه پر مخ روان دی او یو نیم ادلون بدلون پکې راوړل کېږي
.

## چلند لار (پروسیجر)

پښتو، لکه د نړۍ بله هره ژبه د غږیزو او مانیزو پیلامو (لغاتو) د یوه غونډال (سېستم) په توګه د خپلې ویونکې «پښتني» ټولنې له خوا د خپلمنځي پوهاوي لپاره ویل کېږي او اورول کېږي. اوسنۍ پښتو د نورو خپلوانو (آریاني) ژبو په څېر د خپلې پرمختیا په درېیم پړاو یا پېر (دور) کې ټیکاو لري چې له

لسمې زېږدي (میلادي) پېړۍ راپیل شوی او تراوسه پر مخ ځي. تر دې له مخه د منځنۍ پښتو پېروو چې اوږدوالی یې لږ تر لږه دولس پیړۍ اټکلېدای شي.

## پښتو ګړدوددونه (لهجې) پر څلورو غورو ډلو وېشنه مومي: (۱) سوېل - لویدیزه پښتو، (۲) سوېل - ختیزه پښتو، (۳) شمال - ختیزه پښتو او (۴) منځنۍ پښتو.

یوه - کره پښتو لکه یو - ټولیز - کره ګرامر یې د بېلابېلو ګړدودونو یو داسې غورچاڼ دی چې د لیکنۍ اړتیا له مخې یې د شاعرانو او لیکوالو له خوا بنسټ ایښوول شوی او پر له پسې یې بشپړتیا موندلې ده . خو له یوې پېړۍ راهیسې چې پښتو په یو واریز ډول خپرني ډګر ته راګډه شوې، دغه بهیر یې هم ګړندی شوی او په دې لړ کې یې له هغو زیاتو آګاهانه او پر له غښتو ژبپوهنیزو هاندوهڅو سره چې له تېرو درو لسیزو راهیسې یې د یوه فرهنګي غورځنګ بڼه غوره کړې، خپل لوړترین بشپړ تیایي پړاو ته رارسیدلی او همداسې پسې ورځ پر ورځ مخ پر بره درومي. دا چې یوه - کره پښتو د لیکوالۍ او خپراوي په بهیر کې را دود شوې او په دې توګه لا سم له لاسه په لیکوالۍ او خپراوي اړه لري، «یوه - کره - لیکنۍ پښتو» هم بلل کېږي.

## یوه کره - لیکنی پښتو پر دوو ټولیزو او غورو بنسټونو ټیکاو لري. (۱) رغاونیزه یا ګرامري یو رنګي او (۲) ویي پانګیزه (لغوي) رنګارنګي.

## ۱ - رغاونیزه یا ګرامري یو رنګي

دا مانا چې د وینګ (تلفظ)، اوازپوهې، ګړپوهې (صرف) او غونډله پوهې (نحوې) په برخه کې له څو بېلابېلو ګړدودي ځېلونو (وارینټونو) څخه هماغه یو ځېل غوره کړشي او وکارول شي چې تر نورو یې تاریخي مخینه یا د ویونکیو شمېره زیاته وي. یا یې هم لیکنۍ او خپرنۍ مخینه او دودوالی ډېر وي، همدا راز یې لنډون، وینګ او خوږوالی او بیا با قاعده والی او نه ګډون په پام کې نیول کېږي: لکه له نوسي، لمسي او نمسي څخه وروستی دا، او یا له ورسید، ورسېده، ورسېدو، ورسېدلو، ورسیدئ، ورسېدلئ، اورسېدو، اورسېدلو... څخه ړومبی دا.

## ۲ - ویي پانګیزه رنګارنګي

په دې مانا چې په یوه - کره - لیکنۍ پښتو کې په دغه اړه له غورچاڼ یا په ملایي نومونه (انتخاب واطراد) څخه کار نه اخېستل کېږي، بلکې د یوه ویي (لغت) ټول هممانیزونه (مترادفات) رااخېستل کېږي، لکه تیږه، ډبره، ګټه، کاڼی، غرګی، کمر... داځکه چې په لږو ډېر مانیز بدلون سره راز راز

کارول کېدای شي: تيږه د عامې تيږې (سنگ)، ډبره د کاني (معدني) تيږې، گټه د ودانيزې (تعميراتي) توکي، کاڼی د آسماني تيږې، غرگی د گردې تيږې لپاره چې د يو ځيز د اوږه کولو يا ميده کولو لپاره په کارېږي او داسې نور. دغه همماني‌زونه د گرامري وارينټو پرخلاف ژبنی او ليکنی يووالی او کره والی نه ژوبلوي، بلکې لايې پراخوي او بډايه کوي.

د يوې کره - ليکنۍ پښتو وييپانگه لکه نورې ژبې له څلورگونو خواووڅخه را بشپړېږي:
(۱) گړدودي وييونه يا گړوېزونه، (۲) لرغوني يا ارکاييك وييونه او يا زړوېزونه، (۳) خپللاسي يا مصنوعي وييونه يا نوېزونه او (۴) پور يا مستعار او د خيل وييونه، يا پوروېزونه.

په دې توگه ړومبني درې ويي ډولونه د پښتو وييپانگې خپله نږه پانگه گڼل کېږي او څلورم دا له نورو (پارسي، هندي، عربي، انگرېزي، پرانسي...) ژبوڅخه راپور شوي او دود شوي دي. مانا دا چې ټوله وييپانگه په سل کې ۷۵ په پښتو اړه لري او په سل کې ۲۵ په پرديو ژبو. تر ۲۵% زياته پورونه پښتو له پښتنو څخه ورو ورو پردۍ کوي او کنډيباغي (پتوا) يا لږ تر لږه اردو ترې جوړېږي.

## ليکلار او ليکدود:

دغه دواړې نومونې د بېلابېلو ماناوو او موخو لپاره دود شوې دي. په ليکلار کې ژبني اړخونه او گرامري جوړښتونه تر پام لاندې نيول کېږي. په دې توگه کله چې وايو، کره يا معياري پښتو ليکلار، نو مانا يې دا چې له پورتنيو آرونو سره سم يې د يوې - کره پښتو استازي او ښکارندويي وکړای شي. خو ليکدود يا املاً په ټاکلي الفبايي يا ليکني (تحريري) سېستم کې د توپير (کنټراسټ) يا نه گډون (عدم التباس) له آر سره سم د يوې ژبې ليکنۍ يا انځوريزه سېمبوليکه بڼه ده. کره ليکدود هله رښتينوالی موندای شي چې په اړونده ابېڅې (الفبا) کې د هر غږ او ويي لپاره ټاکلی سېمبول (توری - حرف) ولري او بيا د هماغې ټاکلې کره ژبې تر وسې وسې څرگندويي وکړای شي. اوسنۍ دوديزه پښتو ابېڅې چې بنسټ يې پر عربي هغې ايښوول شوی، زياتره د (۲۹) گونو بېواکو (کنسوننټو - صامتو) او نيمواکو (w,y) غږونو يا اوازونو لپاره توري (حروف) لري او د اووگونو خپلواکو (واولو - صايتو) اوازونو لپاره تش درې توري (ا، و، ی)، خو بيا هم د اوږده او لنډ (و) لپاره هماغه يوه نښه (توری) کاروي، او د زور او زورکي لپاره گردۍ يا لکۍ ډوله بيا هم گډون رامنځته کوي. همزه (ء) يا چرگۍ (هـ) هم همداسې درواخله. گ له کړۍ (گ) سره ليکل هم يو بې سر وبوله کاردی. ځکه دا نښه يوازې د غبرگژبيزو اوازونو (ټ، ډ، ړ، ڼ) لپاره سمه راځي، چې ژبه ورسره راکړۍ کېږي، گ تخنيکي او اقتصادي ستونزه هم رامنځ ته کوي.

د كره ليكنى پښتو ابېڅې (الفباء) په لاندېني لښتيليك كې وړاندې كېږي:

| دوديز | غږيز(فونيميک) | نوم | بېلګه | غږيزليک |
|---|---|---|---|---|
| ا، ه، ـه | a | زور | اره، اړ | ará, aṛ |
| ه، ـه | ə | زورکی | زړه | zṛə |
| آ | ā | اوږد (ممدوده) الف | آر، آس،کال | ār, ās, kāl |
| ب | b | بې | بر | bar |
| پ | p | پې | پوړ | poṛ |
| ت | t | تې | تل | tal |
| ټ | ṭ | ټې | ټل | ṭal |
| ج | ǰ | جې (جيم) | جل | ǰal |
| چ | č | چې | چم | čam |
| ځ | j | ځې | ځل، ورځ | jal, wraj |
| څ | c | څې | څرخ، خرڅ | carx, xarc |
| خ | x | خې | خر، خور | xar,xor |
| د | d | دې (دال) | دادا | dādā |
| ډ | ḍ | ډې (ډال) | ډول | ḍol |
| ر | r | رې | رګ، تور | rag, tor |
| ړ | ṛ | ړې | ړوند | ṛund |
| ز | z | زې | زر | zar |
| ژ | ž | ژې | ژر | žar |
| ږ | ğ, ẓ̌ | ږې | ږيره | ğıra || ẓ̌ıra |
| س | s | سې(سين) | سم | sam |
| ش | š | شې(شين) | شپه | špa |
| ښ | x̌ , ṣ̌ | ښې | ښار | x̌ār || ṣ̌ār |
| غ | γ | غې(غېن) | غر | γar |
| ك | k | كې(كاف) | كر | kar |
| ګ | g | ګې (ګاف) | ګڼ | gaṇ |
| ل | l | لې(لام) | لر | lar |
| م | m | مې(ميم) | مور | mor |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ن | n | نې(نون) | نر | nar |
| ڼ | ṇ | ڼې | روڼ | ruṇ |
| و | (o) o | او [اوږد (و)] | کور | kor |
| و | u | او [لنډ (و)] | زوم | zum |
| و | w | وې [ښېواك (و)] | ور | war |
| ه،ھ | h | هې | هم | ham |
| ې | e | اوږده يې | هېر | her |
| ي | i | لنډه يې | وير | wɪr |
| ی | ay | زوروالہ يې | وری | wray |
| ۍ،ئ | əy | زورکي والہ يې | ورۍ، خورئ | wrəy, xwrəy |

| عربي | غږيز | نوم | بېلگه |
|---|---|---|---|
| ث | Θ | ثې، ثاء | حديث |
| ح | ḥ | حاْ | حليم |
| ذ | Δ | ذال | ذاکر |
| ص | ṣ | صاد | صابر |
| ض | Z | ضاد | ضمير |
| ط | ṯ | طا، طې | طاهر |
| ظ | ẕ | ظا، ظې | ظاهر |
| ع | Σ | عين | عالم |
| ف | F | فاء، فې | فاروق |
| ق | Q | قاف | قرآن |

## د رغاونيز يا پښوييز (گرامري) يووالي آرونه (پرنسيپونه)

دا پرنسيپونه د يادشوي پروسيجر په رڼاکې د پورتنيو معياري يا ټوليزو پرنسيپونو د کارونې لپاره پر کار راتلاي شي او د هغو علمي کول کيدوني کولای شي. په بله وينا داسې آرونه (پرنسيپونه) چې د هغو له مخې موږ په راز راز گړدودي گرامري ځېلونو (وارينټونو) کې د غورځونې (اطراد) او يا

غوروني (انتخاب) اجازه ولرلای شو:

**۱- دویو نکو ډېروالی**، دا په دې مانا چې د یوه گرامري توك له مخې له څوو ارینتونو څخه هماغه یوه ته معیاري ارزښت ورکړ شي چې د ویونکو شمیر یې ډیر وي، لکه: (ورځ) د (روځ)، (ځمکه) د (زمکه)، (شته) د (سته) یا (ما نیولی دی) د (ما نیسلی دی) پر وړاندې. په دې لړ کې منځنۍ پښتو د نورو دربواړو گړدودي ډلو پرخلاف یو نیم تاریخي (لرغونی) آواز خوندي ساتلی، خو د ویونکیو د لږوالي پر بنسټ کره نه شي منل کېدای، لکه س په سگه، دېرس ، مسر، کسر... کې.

**۲- توپیر او نه التباس**، په دې مانا چې د یوه فونولوجیکي او گرامري توك له وارینتونو څخه هماغه یوه ته معیاري ارزښت ورکړ شي چې له نورو معیاري امرل شوو توکونو سره یې توپیرو شي، په بله وینا ، د التباس او یو له بله د ټکر مخه یې ونیول شي. د ژبنیو توکونو تر منځ توپیر او نه التباس یو ژبنی قانون او ناموس گڼل کېږي، لکه (شول) د (سول) پر وړاندې چې له (سوځل) سره یې ټکر راځي، همدارنگه سیوری - سوری ، پسور - سور، خپور - خور ... دراخله.

**۳- د ویوالی (باقاعده گي)**، دا مانا چې له بېلابېلو رغاونیزو (پښوییزو) ځېلونو څخه هماغو ته معیاري ارزښت ورکول کېږي چې بېدویې یا استثناء یې کمه وي، لکه دا دوی (قاعده) چې - زور(- a) په دودیز او بیا (فونیمیك) لیك کې د ښځینه پایلې په توگه په پام کې ونیول شي او ډېرگړې یې هم - ې (- e) ، نه دا چې د نورو دروگونو گړدودي ډلو پر وړاندې د کندهاري گړدود پر بنسټ تر خجن خپلواك (واوېل) وروسته a_ پر ə واړول شي او ə بیا په ډېر گړي کې پر _i.

همداسې په نرینه نومونو کې درواخله چې کندهاریان یې د نورې ډېرۍ پښتو _ay پای د ناحجنۍ له کبله پر əy اړوي او بیا یې ډېرگړی هم د _Ii پرځای پر _əy پای ته رسوي او داسې نور.

**۴- سپما**، دا مانا چې تر وسې وسې او وروستني بریده په لږو ویيو کې ډیره مانا او مطلب وړاندې شي، بې له دې چې ابهام او گونگوالی پیښ شي، یوه خبره چې په یوه جمله کې راتلای شي، دوو ته باید ونه رسېږي او یوه جمله چې له پنځو توکو څخه جوړېدای شي، په کارنه دي، اتو یا لسو توکو ته ورسي. البته په ادبي او هنري ډگر کې د یوه مطلب څو څو رازه څرگندول له سپما څخه سرغړاوی نه گڼل کېږي، هغه هم په دې شرط چې نوې نوې مانیزې او بدیعي رنگارنگۍ منځ ته راوړي، د چا خبره تکرار حسن اوسي، نه دا چې تشه لفاظي بڼه ولري. له بده مرغه زموږ ډېر لیکوال د ډېر پخواني ختیز دود تر اغېز لاندې د همانیزو ویيو او جملو بیا بیا کارول د خپل لیکني سبك ستر ټوك گڼي. سپما په کړاوړون (فعلي گردان) کې هم ډېره پاموړ بلل کېږي او هغه دا چې له بیلابیلو گړدودي ځېلونو یې هماغه لنډه دا امرل کېږي: لکه د (یوه شوم) پرځای (وپوهیدم) یا د (ډوډۍ وخوړلې شوه) پرځای (ډوډۍ

وخوړل شوه) . په ويي غونډونو، لکه: کابل پوهنتون، د (د کابل پوهنتون)، (کابل ښار) د (د کابل ښار) ... پر وړاندې. په نوېږونو کې، لکه: (رسنۍ) د (خبري يا خپرندويه رسنۍ) پر وړاندې.

۵ - اساني او رواني، په دې جاج (مفهوم) چې د يوه ژبني توك د تلفظ (وينگ) او له دې سره بيا د ليك او چاپ ... له مخې پښتنو او نا پښتنو ټولو لپاره اساني او رواني ولري. دا آر په پښتو زده کړه او ښوونه کې بيا په ځانگړي ډول د زيات ارزښت وړ دی، لکه (راوړ شو)او راکړ شو، د (راوړل شو) او (راکړل شو) يا پېړ د پرېړ، درون - درانه د دروند - دراندہ پر وړاندې .

۶ - خوږ غږي او بلاغت، چې يو ژبنی توك په ټولنه کې (دا کثريت له نظره) رکاکت او کراهيت ونه لري. د ساري په توگه له فونولوجيکي او گرامري او ان لغوي او محاوروي وارينټو د يوه گرانښت او خوږوالی زيات وي، لکه: (هيلۍ ته لامبو ښوول) د (کونډې ته غوول ښوول) پر وړاندې يا (نتل) د (رټل)، (وختېری) د (وخت گوډی) پر وړاندې ... .

۷ - لرغونوالی، په دې جاج چې د وييزو او گرامري وارينټونو په ډله کې هماغو ته معياري ارزښت ورکول کېږي چې يې تر نورو تاريخي او اېتمولوجيکي لرغونوالی ډېر وي، لکه: (ځمکه) د (مزکه)، (ولاړم) د (لاړم) پر وړاندې. دا چې له نجل - نجن، نجلۍ - نجنۍ، زما - دما، زموږ - دموږ، ستا – د تا او ستاسې – د تاسې، ژغ - جغ، جندره - ژندره، ژرنده - جرنده، نږور - نگور... څخه وروستي ځېلونه لرغوني دي، خو د ويونکيو زياتوالی او له دې سره کره والی د مخنيو پر خوا دی .

يادونه:
په دی ياد شوو پر نسيپونو کې کېدای شي، يو له بله ټکر راشي. په دې مانا چې که يو توك د يوه پرنسيپ (لکه لرغونوالي) له مخې معياري ارزښت ولري، مگر د يوه بل پرنسيپ (لکه د ويونکو ډېروالي) له پلوه يې دغه ارزښت سلب شي، په دې توگه په کار ده چې لومړی د ژبپوهنې يا عملي او تطبيقي چانس او ارزښت د ډيروالي او لږوالي له مخې هر پرنسيپ ته لوړې يا ټيټې شمېرې ورکړ شي او کله چې يو ژبنی توك د ټولو پرنسيپونو له ټوليزو شمېرو څخه تر نيمايي زياتې يوسي، معياري ارزښت به ورکول کېږي. د ساري په توگه د ننني ژبپوهنې له مخې د يوه ژبني توك ډېر کاربډنگ، په بله وينا، د هغه د ويونکو ډيروالی تر تاريخي لر غونوالي او دودوالي څخه زيات ارزښت لري او په کار ده،که لرغونوالي او دودوالي يا نورو آرونو ته په سل کې پنځه پنځه شمېرې ورکول کېږي، نو د ننني دود او کاريدنگ او ويونکو ډيروالي ته به په سل کې شل شمېرې ورکړشي. بياهم که د دې کار لپاره کومه بله جوړه شوې واکمنه غونډه له لا کره پروسېجر سره ټولو آرونو ته يو يو راز شمېرې ورکول غوره

وګڼي، په بله وينا ، هيڅ شمېرې ورنه کړي او د يوه ژبني توك په معياري ټاکلو او امر لوکې د ياد شوو آرونو ډيروالی په پام کې ونيسي، نو بيا هم له علمي بنسټونو څخه دومره سرغړاوی نه ګڼل کېږي. ځکه د ژبې غوندې يوې ټولنيزې پديدې، هغه يې هم په ليکنۍ برخه کې قرار دادي او تړوني لاسوهنې او ريفورمونه تل منلي او منلای شي.

د دې لپاره چې دغه لاربنود مو له توليزوالي څخه را ځانګړی کړی او بيلابيلو ژبني توکونه او ټوکونه (اجزا) مو په کې رانغښتي اوسي، لومړی يې له غونډله پوهيزو (نحوي) يونونو (واحدونو) څخخه را پيلوو، بيا ګړپوهيز (صرفي)، ورپسې غږپوهيز (فونولوجيکي) هغه تر کرونې لاندې نيسو او تر ټولو وروسته بيا د دغو ټولو رغاونيزو او پښوييزو (ګرامري) يونونو يا توکونو د کرونې په رڼا کې ليکدودي (املايي يا ارتوګرافيکي) هغه .

## لومړی - په غونډله پوهيزه (نحوي) برخه کې:

۱- لکه څنګه يې چې له نوې نومونې څخه ښرګندېږي، په غونډله پوهه کې غونډلې (جملې)، غونډونه (فقرې)، او ګړنې (محاورې)، په بله وينا ، ښرګندنې (اکسپرېشنونه) تر ويېنې (بحث) لاندې نيول کېږي او په دې توګه د يوې ژبې لوېترين توکونه يا يوونونه (واحدونه) را اخلي چې د دود له مخې د ګړپوهې (صرف) تر څنګه د پښويې (ګرامر) دويمه څانګه بلل کېږي. په دې لړ کې غونډله بيا له اړوندو رغندو توکونو (نومونو، کړونو، کړولونو يا قيدونو او وييکو يا اداتو) سره په وروسته ډول تر کارونې لاندې نيسو .

۲- پښتو غونډله ړومبی پر دوو برخو يا غونډونو (فقرو) وېشل کېږي چې لومړی هغه ته نوموال غونډ وايي او دويم ته کړوال، خو د دندې له مخې لومړی هغه اينښی (مسند اليه يا مبتدا) بلل کېږي او دويم دا اينښونی (مسند يا خبر). په اينښي کې کړند (فاعل يا نائب فاعل) له اړوندو ستاينومونو او نورو ټاکندو توکو سره راځي چې لومړی پېژند (حرف تعريف)، بيا شمېرنوم ، ورپسې ستاينوم او وروسته پخپله کړند اوډون مومي. د غونډلې په دويمه برخه «اينښوني» کې کړی (مفعول) او کړ او کړول يا کړولونه او پخپله د کړي اړوندان راځي، په دې اوډون: ړومبی د کړي پېژند يا شمېرنوم، ستاينوم او بيا په خپله کړی، ورپسې کړول يا کړولونه او په پای کې کړ او مرستيال کړ يا کړونه راځي. ځينې کړولونه د نوموال ونډ په سر کې هم راځي، لکه: نن په کابل کې واووره ووري، په لندن کې ډېر مهال افغان سفارت نه وو ... .

لکه : ببرك _ سنك په څپېړه وواهه (يا وهلی دی).

۳- که په دغه اوډ کې یو توکی له بل توکي سره ځای بدل کړي، غونډله خپل کره والی (معیار) له لاسه ورکوي، لکه چې په ګړنۍ پښتو کې ویل کېږي: یو سنك ببرك په څپېړه وواهه. یا د شمېرنوم له ځای بدلون سره: په ښاري دویمه مینه کې ... د «په دویمه ښاري مینه کې...» پر ځای، هر ګوره په زماني کړولي غونډونو کې ستاینوم له شمېرنوم سره ځای بدلولای شي، لکه: په دوو تېرو کلونو کې یا په تېرو دوو کلونو کې، خو که خبره ګړیو او شېبو ته ورسي، ستاینوم هرومرو تر شمېرنوم له مخه کره برېښي، لکه: په تېرو څلېرویشتو ګړیو کې، په تېره یوه شېبه کې ... .

دغه راز کله ناکله د سبکي رنګارنګۍ لپاره په منفي غونډله کې آر کړ (اصلي فعل) تر مرستیالکړ (معاون فعل) وروسته کېدل لړ و ډېر دود لري، لکه: زمری نه دی راغلی = زمری راغلی نه دی.

د غونډلې بېلابېل کوشني کوشني توکونه او په دې لړ کې سربلونه، وستربلونه او نور وییکي (ادات) په وروسته ډول تر کارونې لاندې راځي.

۴- هر ګوره، که په غونډله کې د غښتلیو نومځرو (زه ـ ما ـ موږ، ته ـ تاسې، دی ـ ده، دا ـ دې ـ دوی یا زما ـ زموږ ، ستا ـ ستاسې، د ده ـ د دوی...) پر ځای کمزوري هغه (مې ـ مو ـ دې ـ مو ـ یې...) وکارول شي، نه یوازې ترې تولنومونه (مضافات)، ستاینومونه (صفات) او شمېر نومونه (اعداد) ړومبی راځي، بلکې کړی (مفعول) هم ترې مخکې کېږي، لکه:

یوه پېړه ډوډۍ (مې، دې، مو، یې) وخوړه... .

۵- که یو نوم تر یوه زیات ستاینومونه ولري، د ارزښت له مخې پرله پسې اوډون مومي او شمېرنومونه تر ستاینومو له مخه راځي :

| کره | ناکره |
|---|---|
| یو ډېر ښه سړی راغی | ډېر یو ښه سړی راغی . |
| دویمه ښاري ځانګه | ښاري دویمه ځانګه |
| یوه پېړه توره ډوډۍ مې وخوړه | یوه توره پېړه ډوډۍ مې وخوړه (توره ډوډۍ د سپینې پر وړاندې یوه دوده نومونه ده) |

مګر «بېړنی لومړنی مرستې»، نه «لومړنی بېړنی مرستې»، ځکه «لومړنی مرستې» یو نړیوال منلی ترنګ او جاج دی.

د ابښې او ابښونې (مبتدا او خبر) تر منځ بشپړ ګرامري سمون اړین دی :

| کره | ناکره |
|---|---|
| پلوشه راغله . | پلوشه راغلل . (کندهارۍ پښتو) |
| ما ډوډۍ وخوړه . | ما ډوډۍ وخوړل. // |
| پلوشه زما خور ده . | پلوشه زما خور دي. // |
| // // | پلوشه زما خور دی. (ځائۍ پښتو) |
| زلمی- زما ورور دی . | زلمی دما ورور ده. (منځنۍ پښتو) |
| زه او ته - ښار ته ځو. | ما او تا ښار ته ځو. (ننګرهارۍ پښتو) |
| هلکان راغلل. | هلکان راغلو. (د غزني، پکتیکا، کوټې، کوهاټ... خوا ته) |
| زلمی، زرڅانګه، زرمینه او زرینه راغلل | - راغلې. |
| ما- په لندن کې یو کال او درې اوونۍ تېر کړل. | - تېرې کړې. |
| نولسمه او شلمه پېړۍ تېره شوه. | - تېرې شوې. |
| اوړم کال او پروسږکال- ښه تېر شو. | - ښه تېر شول. |

[زیار، پښتو لیکلار ۱۲۹-۱۲ مخ].

«چې» د غونډلې د ناازادو یا مرستیالو رغندو ټوکونو په لړکې یو ډېر کاری او ډېر پېښنی اړیکوییکی (ارتباطی ادات) دی.

| کره | ناکره |
|---|---|
| زه راغلم چې تا ووینم. | زه راغلم (تر څو) تا ووینم. (کابلۍ پښتو) |
| د بي بي سي والايې "تر هغې"هم پرځای کاروي: | // |
| هېواد ته خدمت وکړئ چې اباد شي. | هیواد ته خدمت وکړئ (تر څو) اباد شي. |
| بلېر امریکا ته ولاړ چې له کلېنټن سره وګوري. | - (چېرته) چې له کلنټن سره ګوري. (پېښوری پښتو) |
| زه یو کتاب اخلم چې ویې لولم. | ـ (کوم) چې لولم یې (- هغه چې -). // |
| واجپایي اسلام اباد ته ولاړ. | - (څوک) چې له پاکستان سره. // |
| چې له پاکستان سره خپل اړیکي ښه کړي. | تعلقات ښه کول غواړي. |

یا د اجمل په شعر کې:
ځئ هغو خوارو له جنت وګټو (ځوك) چې له ځایه دوزخیان پیدا دي.
د «چې» په ملګرتیا یو لړ ترښتي (ترکیبي) اړیکوییکي، لکه دا وروسته کره بېلګې یې:
څومره چې غوربړي- هومره نه وربړي.
څنګه چې ناروغ وم ، نو روغتون ته ولاړم.
کله چې ته راغلې، بیا به زه ولاړ شم.
ناکره بېلګه یې لکه:
ځکه چې ناروغ وم- نوو روغتون ته ولاړم. (کندهاری پښتو)
د همدې غونډلې کره بڼې:
څنګه چې ناروغ وم- نو روغتون ته ولاړم.
یا:
(څنګه) چې هوا ښه شوه ـ (نو) له کوره ووتم (څنګه او نو غورځېدای شي)
«لکه څنګه چې» د ترښتي اړیکوییکي (ترکیبي ارتباطي ادات) په توګه:
لکه څنګه چې تاریخ زیاده کړې ده- پښتانه له آره ساك دي.
«څو»، «څو چې» یا «تر څو چې» یوازې د زماني کړول (قید) په توګه، هغه هم د لومړۍ راوړل شوې څېرمه (فرعي) غونډلې په سر کې راځي او یوازې په همدې کارونګ د پارسي «تا» انډول کېدای شي،

لکه:
تر څو چې کوشنی ونه ژاړي - مورتی نه ورکوي.
څو چې بنستپال پر هېواد واکمن وي، د سولې او سوکالۍ هیله نشته.
[دلته یوازې «ترڅو» او « څو» هم ناکره نه برېښي]
همداسې له «چېرې» او « کله» سره، لکه:
چېرې چې اوسې، په خوی به د هغو سې.
کله چې ته راغلې، هله به زه ولاړ شم.
څوك چې خوب کوي، نر کټې به یې زېږي.
ځینې ناکره لیکوال یې له تکراره ځان ژغوري اوهغه دا چې که یوځل یې بیانیه وکاروي، بل ځل یې د پارسي « تای علتیه» تر اغیز لاندې پر (څو) یا (ترڅو) اړوي:
نازوله ښوونځي ژر راغله چې له مور سره بازار ته ولاړه شي، « تر څو» ځانته ګوټونه واخلي [دلته تر

څو پر « او » یا « او په دې توګه » بدلول په کار دي].
[د لازیاتې خبرتیا لپاره: پښتو لیکلار ۶۴-۵۶۱ مخ، پښتو پښو یه دریم چاپ، اړونده سکالو، پښتو ویي پوهنه ۴۴ مخ، د انګرېزي-پښتو د سربلونو سیندګي سریزه].

## سربلونه او وستربلونه:

۶- سربلونه د غونډلې (جملې) د مرستیالو رغندو ټوکونو په توګه له ازادو یا آرو ټوکونو (نومونو) سره کړولونه (قیدونه) جوړوي. داسې چې سربل تر نوم له مخه او وستر بل ترې وروسته راځي، لکه په کور کې «په» سر بل او « کې» وستر بل دی. د پښتو د دغو غبرګو وییکو یا «غبرګبلونو» په وړاندې زیاترې خپلوانې ژبې یووستوي سربلونه کاروي، لکه پارسي «در» او انګریزي «in» د کره لیکنۍ پښتو سربلونه او وستربلونه په لاندې ډول ښوول کېږي:

۷- «له» له هغو ډېر پېښو سربلو څخه دی چې د څو بېلابېلو وستربلونو په ملګرتیا له منځ کې راښکېل نوم سره بېلابېل کړولونه (قیدونه) جوړوي او له یو لړ منځنیو ګړدودو پرته له یوه بل ډېر پېښي سربل «د» سره ګډ شوی او په دې توګه یو ژبنی آر (توپیر یا نه التباس) تر پښو لاندیې کوي.

لکه:

| کره | ناکره |
|---|---|
| تل به دې ساتم له پردو وطنه... | تل به دې ساتم د پردو وطنه... |
| ته خو به له زلفو کوڅې جوړې کړې... | ته خو به د زلفو کوڅې جوړې کړې... |

او داسې نورې پېیلې او ناپېیلې بېلګې یې. کره جوړې یې دا دي:
غرګبلونه یا د سربلونو او وستربلونو جوړې په لاندې ډول بېلابېلې تر سپړنې لاندې نیول کېږي:
له - سره: زه له زلمي سره له کندهاره (څخه)، راغلم (څخه، په دې توګه غورځېدای شي)
له- څخه: د " څخه " ناکره ګړدودي ځېلونه (څه، نه، ځنې) هم په پېیلو ویناوو کې راتلای شي.
له - سره سره: زه له ناروغۍ سره سره (بیا هم)، کار ته ولاړم . یو وستوی «سره» په همدغه (باوجود) جاج هله بسیا کېدای شي چې تر «له» له مخه راشي، لکه: سره له ناروغی کارته ولاړم. «بې» (ل) هم همداسې په سرکې راځي.
له - پرته: له رابللیو پرته، نا بللي هم راغلي ول (- څخه پرته - په یو ځایي ډول کره نه راځي).
له - وروسته: له غرمې وروسته لمبا ته ځم (دلته تر «له» "تر" زیات کره برېښي).

**له - راهیسي**: له دوولسیزو راهیسې افغان ولس د مرگ و ژوند پر پوله ولاړ دی (د راپه دې خوا ، د- راسې، د- را په هیسته ... یې ناکره انډولونه دی.
په هغو کړولي ترنگو (قیدي ترکیبو) کې چې «څخه» ترې غورځېدلی گڼل کېږي:
د قانون له مخې (څخه) چې «تر مخه» یې ناکره انډول دی، د ځان له خوا ، له ډیرې تودوخې، له غرمې (- تر مابنامه)....
په «لپاره» کې د لیکدودي آر له مخې «له» رانغښتل شوی دی. کله کله د " راهیسي" پر ځای تش "څخه" او یا هم د لاسپما لپاره یوازې پر "له" بسنه کیږي. لکه له کلو څخه، له پخوا ... د محمد هوتك په لیکلار کې هم زیاتره "څخه" غورځېدلی دی. له آره، له لاسه، سم له لاسه، وار له مخه، سم له سمونې هم هداسې درواخله .
له ساده (یووستوو) کړولو څخه بېلښتي کړولونه رغوي. لکه : له پاسه، له لاندې، له دننه ... کښل پکار دي .

۸- «تر» چې له "وروسته" یا "مخکي، له مخه "،" څخه " "پرته"... او ستربلو سره هماغه کړولونه یا ترنگونه منځته راوړي چې "له" یې هم راوړي، خو بیا هم لکه چې وویل شول، دلته له "له" څخه "تر" ډېر کره راځي، په تېره د وینگ د اسانتیا له پلوه. د "تر" نور او ستربلونه، لکه:
تر- لاندې: تر ډېوې لاندې تیاره ده (ناکره: د ډیوې [د سیوري] لاندې تیاره ده.
چې اوبو ته وایي پانې - سر یې لاندې کړه تر کانې.
لاس تر زنې لاندې مه ږده - ستا به عادت وي ما به ورك له ملکه کېنه!
تر- پورې: تر مرگ پورې به له خپلی پښتو وانه وړم (که "پورې" غورځول کېږي، نو "تر مرگه " غوره راځي).
تر- **څخه**: تر سرو وریجو (څخه) خوب ښه دی ("تر - څخه " دلته پرتلیز کړول جوړوي او له منشایي "له - څخه" توپیر مومي).
تر- دننه: تر کور دننه یې ژوند خوار دی.
تر - د باندې (بهر): تر ښار د باندې څوك وتای نه شي.
۹- «په»: له خپلو څلور گونو او ستربلونو سره څلور ډوله کړولونه (قیدونه) رامنځته کوي، لکه :
په - کې: په کوټه کې تیاره ده.
په - سره: په کیلي (سره) کولپ پرانېستل کېږي (سره غورځېدای شي او اړوند زور پای یا زورکی پای ښځینه نوم نه اغېزمنوي، لکه: په خوله مې ورته وویل، په مېړانه وجنگید)

په- پورې: په چا پورې مه خانده (پورې هله غورځېدای شي چې "په" پر "پر" واړول شي).
ستا په خبرې پورې مې وويل (ستا د خبرې په اړه مې وويل).
په - پسې: زه په هر چا پسې نه ځم.
(په يو لړ ختيزو ګړدودو کې "په" زياتره غورځول کېږي او له (په - کې) پرته لکه "له" زياتره پر "د" بدلېږي. اردو - انګريزي پېښې، لکه: زه (په) پښتو کې ليکل - خبرې يا ژباړه کوم د چا په مشرۍ کې، په ډېر شمېر کې (ګڼ)، يا ډېر شمېر... ناکره دي.

۱۰- پر- (باندې): دا سربل له لويديزو ګړدودو پرته نور زياتره پر "په" اړول کېږي او ژبنی توپير (contrast) له منځه وړي او ګډون (التباس) رامنځته کوي د ("باندې" يو ليکدودي ځېل "نې" دی):
زرينې زرمينه پر مېز ځملوله او په لرګې يې ووهله.
يا: زرينې زرمينه پر تخته ځملوله او په ځوباړي يې ووهله.
زرينې زرمينه پر تخته (باندې) ووهله (مانا دا چې لومړۍ يې پر تخته ځملوله او بيا يې په سوك ځپيړه يا لښتې لرګي ووهله، نوکه وليکو چې: (زرينې زرمينه په تخته ووهله) مانا دا چې د تختې په وسيله يې هغه ووهله. همدا راز (پر مېز) او (په ميز)، (پر ځوکۍ) او (په ځوکۍ)... ورته مانا ګډون رامنځته کوي. د همدغه آرو معيار له مخې بايد: په پښتو ليکل "او" "پر پښتو ليکل " سره په دوو بېلابېلو ماناوو وکاروو.

د ګران معصوم هوتك (دعوت ۱۱۳ او ۱۱۴ ګڼه ۹ مخ) په " واښه پر خوله، رسۍ پر غاړه" کې لومړۍ "پر" پر "په" کره ګڼي او هغه هم په دې چې واښه په خوله کې دننه نيول کيږي، نه پر خوله باندې، خو زه يې ورسره په دې منلای نه شم چې يو خو په ظرفي مانا او جاج "په" ما هيڅکله، په هيڅ ګړدود او متن کې بې "-کې" سر بله نه دی موندلی او بله دا چې دلته اړينه نه ده چې واښه دې کورټ او سکوټ دننه په خوله کې ونيول شي، بلکې کېږي د چا خبره هسې يې اکټ وشي، "روژه پر خوله" هم همداسې درواخله. دلته "پر" سرسري او بابز جاج اخلي، کوچيان وايي: "موږ اوړی پر کابل او ژمی پر پېښور تېروو".
ځکه دوی تر ښارو او کليو بهر په کېږديو کې اوسي، نه دننه په ښارونو او مېشتو سيمو کې.
که چېرې "پر" دلته پر "په" واړوي، هرومرو به ورسره "کې" ملګرې کوي او د اړوندو ښارونو يا سيمو "دننه" مانا به ترې اخلي، يا په ملايي ژبه د استعلايي مانا پرځای ظرفي هغه. دا هم څرګنده ده چې ډېروکوچيانو هم "پر" هر چېرې پر "په" اړولی، په بله وينا ، را لنډ کړی دی، خو د ياد شوي آر له مخې دا دواړه سربلونه سره توپيرول په کار دي، که څه هم ډېرى يې يوازې "په" په دواړو جاجو يو شان کاروي، د "پر" نور کره کارونځايونه:
يو څه پر بل څه اړول يا بدلول، ژباړل او داسې نور، پر مخه دې ښه، (مخ) پر وړاندې، پر کال، پر

میاشت، پر ورځ، پر شپه، پر_بجو...

۱۱- بې- لکه جرمني ohne یا انګرېزي without له آره ځانته کارول کېدای شي، لکه:
بې زده کړې ژوند ګران دی، بې علمه ژوندون ګران دی...
ورسره "له" ملګری کول او بیا ورسره "څخه (ځنې،) " اوستربل غاړې کول، د سپما، اسانۍ اوروانۍ آرونه زیانمنوي او زیاتره په پېیلې (منظومه) وینا کې ورته د تول برابرۍ لپاره اړتیا پیدا کېږي.
که اړوند توکي چې باید نفې یې کړي، زیات شي، بیا یې پرځای "له - پرته" کارول په کار دي: د هېواد " له" ارامۍ او پرمختګ " پرته " بله هیله نه لرم. " له " زده کړې او کارو زیار " پرته " ژوند کېدون نه لري.
همدارنګه په سرچپه ډول د یوه یووستوي یا تړښتي توك یا غونډ (فقرې) لپاره " له - پرته " کارول هم کره نه برېښي، لکه: له پیسو پرته هم ژوند کېدای شي چې کره او لنډ اسانه بڼه یې "بې پیسو هم ژوند کېدای شي". "بې" لړو ډېر د «- له» په ملتیا تل د نومونو او غونډونو په سر کې راځي او د " له - پرته " ځای نیسي، لکه:
زه بې له هغې هم درتلونکی وم، بې ستا له وینا ما خپل کار ترسره کړ. کټ مټ لکه "سره" چې د "باوجود" په مانا منځنی دریځ لري. نور نا کره انډولونه، لکه: د زمري نه په غیر، د ستا نه په غیر.

۱۲- (و) - ته: "و" یو زوړ سر بل دی او یوازې یې له تاریخي پلوه د کره والي یو آر په برخه دی چې د ویونکو د ډېرې، لیکني او خپرني دود، لنډون او اسانتیا د پنځګونو آرونو په وړاندې په هیستوریزمونو کې راځي او یوازې اړوند او ستربل "ته" یې کره ګڼل کېږي. ان په لویدیزه (کندهارۍ) پښتو کې چې دغه پخوانی سربل چې لا ژوندی ساتلی، هم د یوه لړ لیکوالو او په تېره شاعرانو له خوا یو مخیز نه کارول کېږي چې محمد هوتك (پټه خزانه) یې غوره بېلګه ګڼل کیږي.
په لرغوني او منځني شعر کې د - ته تر څنګه و - وته، و- لړو ډیر لېدل کېږي، لکه:
... هر پلوته ټپې زړونه په ځار ځار
... چې غزنه ته مې باتلی په تلوار
... سه یې والوتله هسك ته پردې لار
... نه را درومي غور ته بیا جوپې د ښار (اسعد سوری).
همداسې ښکارندوی، شیخ بوستان، اسماعیل، متي، خوشال، رحمان... (- ته) ډېر کارولی، که څه هم کېدای شي، لاسوند یې وزني اړتیا وي.
د (و- ته) بېلګې، لکه: څمه څمه چې اوږد یون مې دی ومخ ته - د یا نه څوری به اچوم و ترخ ته (خرښبون).
د (و-وته) بېلګه:

خدای وما وته ښکاره کړ هغه لمر بیا (رحمان بابا)
د (و-) بېلګې:
سوز ګداز د محبت هسې و ما را (پیر محمد کاکړ)
چې مې خوږ کا کام، ترخه وما ناکام را (محمد هوتك)

۱۳- د «ته» او ستربل شعري انډول "لره" هم دود لري او همدا راز یې "له" هم درواخله چې د غږونج پایله ده او د کوزنیو لیکوالو په پښتو یې په نثر کې کارونه کره نه ګڼل کېږي.

۱۴- « د-...» یو داسې ډېر کاری او ډېر پېښنی سربل دی چې له «کره» پرته د یووستوو نومونو او یا هم د غونډونو په ملتیا د (اضافت، چار پرڅای کوي، لکه: د زمري ورور، د اسمان ستوري، د ژوند سرې تودې، د رمو او ګلو خاوند، د پت څښتن... "- کره" چې له آره د "کور " اوښتې بڼه برېښې، د (د-) یوازینی ساده او یووستوی اضافي اوستربل دی. تشبیهي یا ورتني وستربلونه - یې له "غوندې" پرته نور زیاتره غونډیز (فقره یي) بڼې لري او نارښتیني "کاذب" بلل کیږي، لکه: د مزدور غوندې یې وګټه - د بادار غوندې یې وخوره، د بېوزلو په ګټه، د پېړیو په پوړیو کې، د هېواد اوسنی اکر په پام کې نیول، د ... دفاع، کتنه، درناوی، ساتنه، ننګه ... مخنیوی، لیدنه ، هرکلی... چې بې له "څخه" سم او کره ګڼل کېږي.
د " - غوندې" پرڅای دا غونډونه د تشبیهي وستربلونو ښکارندویي کوي: د- په څېر، د- په رنګ، د- په ډول، د- په دود، د-په شان (یا شانې، په شانته، په شانتې)، د- په توګه، د- په راز، د- په بڼه ....
-"لپاره" یو داسې بېلښتي (اشتقاقی) اوستربل دی چې تر هرڅه له مخه " د اړوندی او ځانګړونې " او لږ و ډېر د "ته" غوندې لرکړی پېر (د اتیف یا مفعول له حالت) رامنځته کوي، لکه :
دا کتاب "د لوستو لپاره" دی، اوبه " د څښاك لپاره " دي. دا ډالۍ "د زمري لپاره" ساتم. "د-" د مهالوییو په ملتیا مهالي کړولونه جوړوي، لکه د کال په اوږدو کې، د ورځې، د شپې، د سهار، د غرمې....
زما کره، ستاکره، زما غوندې، ستا غوندې، زما لپاره، ستا لپاره، ستا په څېر....
دا چې (زما) او ستا له آره (دما) او (دتا) دي، یا په بله وینا، د اسانتیا لپاره (د) پر (ز) او (س) اوښتی، نو زما کره، زما غوندې، ستا غوندې، زما لپاره، ستا لپاره... بل (د) ته اړتیا نه لري او له دې کبله د ستا... د زما... ناکره ګڼل کېږي.
له "د" سره (سره، څخه، پورې، پسې، لاندې، وروسته، پرته، راهیسې، دننه، د باندې...) اوستربل کول ناکره دي چې په زیاترو ختیزو ګړدودو کې دود لري . همدا راز، لکه پاس چې نغوته وشوه، د پارسي ځیلي کابلۍ پښتو تر اغیز لاندې (د- څخه ملاتړ، مرسته، ننګه، استازي، دفاع، مخنیوی، هرکلې، یادونه، ستاینه، ساتنه، څارنه، درناوی، کتنه...) ناکره بلل کېږي، په کار ده " څخه " ترې وغورځول

شي.
له مهالي او توني کړولونو (مکاني قيدونه) سره خپله تولواله (اضافي) دنده داسې پرځای کوي: دغره له پاسه، د کور له دننه، د غره له لاندې، د- له کښته، د- له پورته، د- له سره، د- له مخه، د- له څنګه... په دغه راز بېلګو کې د پای اوستربل "څخه" تل غورځي.
له څرنګيز او توسني (علتيه)، کړولو سره داسې سربل کېدای شي: د- له مخې، د- له کبله، د- له لامله، د- له توسنه، د- له لاسه، د- له ټسه، د- له درده....
په دې ډول د "له" پرځای "د" کارول ناکره دي، لکه: د- دپاسه، د- دمخه، د- دلاندې، د- دلاسه، د- د کبله... یا سم دلاسه، سم د سمونې... لکه څنګه چې د "له" سربل په برخه کې وویل شول.

**۱۵- څرګندنې او ګړنې یا اصطلاحات او محاورې چې د نه شنل کیدونکو غونډونو په توګه کارول** کېږي، باید پردی، بڼه ونه لري، په بله وينا، د پارسي یا بلې ژبې ګړنې ټکي پر ټکي په پښتو جملو کې ونه ژباړل شي او په دې توګه ژبني رغاونه زيانمنه نه شي، لکه: اقدام په عمل راوړل، په وجود راتلل، صورت نيول، پرکرسۍ کښېنول، په عمل کې پلی کول... په دې باب دې نورې اړوندې ليکنې له مخه ولوستل شي.

- دلته د پارسي ځېلې او اردو ځېلې پښتو د ناکره غونډلو (جملو) پر وړاندې د یوې - کره پښتو هغو یو لړ بېلګې د درنو مينه والو مخې ته ږدو.

| کره | ناکره (پارسي ځېلې پښتو) |
| --- | --- |
| د سولې لپاره لازې چارې غوره کول. | د سولې د پاره تدابير اتخاذ کول. |
| په امنيتي لارو چارو لاس پورې کول. | امنيتی تدابير په لاره اچول. |
| دولك کسيز ايراني ځواکونه پر افغاني پوله ځای پرځای شول. | د ايران دوه سوه زره قواوې د افغانستان په سرحد کې متمرکزې شوې. |
| تر پنځوسو زيات بنديان خوشې شول . | زياتره پنځوس بنديان خوشې کړی شول. |
| اوس پوره خبرونه وړاندې کېږي. | اوس زياتره خبرونه وړاندې کېږي، اوس هم د خبرونو پوره سپړاو وړاندې کېږي. اوس هم د خبرونو زياتره تفصيل وړاندې کېدلی شي. |
| په کابل کې خپل ژوند تېروي. | په کابل کې خپل ژوند په سروړي. |
| افغانان له چکالۍ څخه ځورېږي. | افغانان د وچکالۍ د ناحيې څخه |

| | |
|---|---|
| | ځورېږي. |
| زه د کابل په شېرشاه مېنه کې اوسېږم. | زه د کابل په کارتهٔ چار کې کښېنم. |
| ته چېرې اوسې؟ | ته چرته پاتې کېږې؟ |
| ما په کورکې همسایه اچولی دی. | ما په کور کې همسایه کښېنولی دی. |
| ما دکور ور جوړ کړ. | ما د کور دروازه کښېنوله. |
| ما نیالګي کېښوول. | ما نیالګي کښېنول. |
| د ملي ایرونو (عایداتو) پاموړ زیاتېدنې. | په ملي عایداتو کې د ملاحظې یا توجه وړ اقلام زیاتېدل. |
| تر کېدونه دورځنیو لګښتونو کمول. | تر ممکن حده د ورځنیو مصارفو اندازه کمول. |
| دغه وړهڅې (پرخپل وار) ګټورې زبادېدای شي. | دا اقدامات په خپل ذات کې مفید ثابتېدای شي. |
| د سولې هره هڅه ګټوره پر بو تای شي. | د سولې هر اقدام مفید تمامېدای شي. |
| د کور ډوډۍ تر بازاره ارزانه پرېوځي. | د کور ډوډۍ نسبت بازار ته ارزانه تمامېږي. |
| له کرنیزو سرچینو څخه په زړه پورې ګټه لاسته راتلای شي. | د زراعتی منابعونه مطلوبه ګټه میسرېدلی شي. |
| پروژه ترکار لاندې ونیول شوه. | پروژه د اجرا لاندې قرار وموند. |
| له تخنیك څخه په ګټه اخېستنه یا ګټنه. | د تخنیك نه په استفادې سره. |
| ما خپل کتابونه تر لاسه کړل یا راورسېدل. | زه خپل کتابونه تسلیم شوم (کابلۍ پښتو). |
| ما یې خبرې ته غاړه کېښووه. | ما د هغه خبره تسلیم یا تسلیمه کړه (پېښوری پښتو). |
| زه پر ځان پام کوم یا ساتم. | زه ځانته متوجه یم - توجه لرم یا توجه ورکوم. |
| زه خپلې تېروتنې ته ځیر شوم. | زه خپلې سهوې ته متوجه شوم. |
| ما د هغه پام را واړوه یا راوڅکاوه. | ما د هغه توجه جلبه کړه. |
| ما د ده مرسته راوڅکوله. | ما دده مرسته را جذبه کړه. |
| ما خپلې مرستې ته دهغه پام راوڅکاوه. | ما د خپلې مرستې لپاره د هغه توجه را جذبه کړه. |
| زه له خطر سره مخ یا مخامخ شوم. | زه له خطر سره مواجه شوم. |

| | |
|---|---|
| زه په خطر کې یم. | زه د خطر په معرض کې واقع یم. |
| هغوی ځانونه وسپارل. | هغې ځانونه تسلیم کړل. |
| لاری چارې - هڅې - هاندوهڅی... پیلول. | تدابیر - اقدامات - مساعی... پر لاره اچول. |
| افغانستان د تاریخ په خورا بداکرکې ټیکاو لري. | افغانستان د تاریخ په زیاته بده وضع کې قرار لري. |
| زه تر اوړي ژمی غوره گڼم. | زه نسبت یا نظر اوړي ته ژمي ته تر جیح ورکوم. |
| په ځینو برخو کې اندېښنه رامنځته کولای شي. | په یو سلسله مواردو کې د نگرانۍ باعث گرځېدی شي. |
| تاوتریخوالی ډېر شوی دی. | شر شدت سوا شوی دی. |
| ځارندویانو پر توند لارو گولۍ وورولې. | پولیسوالو په شدت (تشدد) پسندو د ټوپك گولۍ وورولې. |
| جنگ سخت شوی دی. | جنگ شدت موندلی دی. |
| نن درې نومولي زرك، زمرك او اتل، خلكو ته وینا وې كوي. | نن دری نامزدان هر یو زرك، زمرك او اتل خلكو ته بیا نیې (بیانونه) وركوي. |
| د هغووېناوې په ورځپاڼو کې خپرېږي. | د هغووینا گانې (بیانونه) په اخبارو کې نشرېدلی شي. |
| هغوی خپل استازي ونومول. | هغوی خپل نماینده گان کاندید (نامزد) کړل. |
| نومولي دادي:... | کاندیدان (نامزدان)عبارت دي د... |
| په یو لړ ځانگړو برخو کې. | په یوه سلسله حادومواردوکې. |
| ډېر وگړي ورسره لېوالتیا لري. | اکثریت خلك ورسره دلچسپي لري. |
| دغه کتاب مې دومره نه خوښېږي. | دغه کتاب ماته چنداني دلچسپ نه دی. |
| دغه کاریې نه خوښېږي. | داکاریې ددلچسپۍ موردنه واقع کېږي. |
| د کورنیو چارو وزیر په ناسوبتیا کې. | د داخله چارو د وزیر په غیاب (غیابت) کې. |
| تر کېدونه یې مخنیوی په کار دی. | ترممکن حده پورې یې مخنیوی ضروري دی. |
| د امریکا کېدوني بریدونه. | د امریکا ممکنه بریدونه. |

| | |
|---|---|
| هېواد د بشپړې نېستۍ تر بریده ورسېد. | هېواد د نېستۍ تر (سر_) حده ورسېدلو. |
| پرګڼ مېشتي ښار توغندي وورول شول. | د نفوسو نه په ډك ښار راکټي بمبار وشو. |
| د باوري لاسوندو پر بنسټ (له مخې). | د بااعتباره اسنادو په بنا. |
| دواړه مشران یوه جوړجاړي ته ورسېدل. | دواړه مشران یو موافقت (موافقې، توافق) ته ورسېدل. |
| د دواړو تر منځ د اندونو اوازمېښتونو راکړه ورکړه وشوه. | د دواړو په منځ کې د افکارو او تجاربو تبادله وشوه. |
| ده ته د الیاره (کابو) پر لاس ورغله... | ده ته دا فرصت حاصل شو... |
| له ګاونډیانو سره دنه تېري او ښواړیکو تړون لاسلیك شو. | د ګاونډیانو سره د تېري دنه کولو او ښو مناسباتو قرارداد امضاء شو. |
| هغوی دوبله پوهاوي لار راخپله کړه. | هغوی دګډ تفاهم په منځته راتګ سلا شول |
| د دواړو ترمنځ ورانپوهاوی پای ته ورسېد. | د دواړو په منځ کې سوء تفاهم رفع شو. |
| جنګ جګړوته پای ټکی اېښوول په کار دي. | باید جنګ وجدل ته وروستی ټکی کېښوول شي. |
| د نومولو استازونو ملیك و پایلل شو. | د نامزدانو د نماینده ګانو لست وروستی کړی شو. |
| هغه د لندن ښار د کتنې لپاره وخوځېد. | هغه د لندن د ښار څخه د کتنې په غرض (منظور) حرکت وکړ. |
| کوشنی پر مېز کښېنا ست. | کوچنی د مېز په سرکښېناستو. |
| خپلې خواخوږۍ یې وړاندې (څرګندې) کړې. | خپل د همدردی مراتب یې په عرض ورسول. |
| په ډزوکې ټپي شو او روغتون ته ولېږدول شو. | د ډزو په نتیجه کې ټپي او روغتون ته منتقل یا یووړل شو. |
| د ځینو پاملرنو له مخی وبښل شو. | د ځینو ملحوظاتو په اساس وبخښلی شو. |
| ترهغې وروسته، (له مخه ...) چې خوازك راغی، نو زه ولاړم. | وروسته، (له مخه...) ترهغې چې خوازك راغی، زه لاړم. |
| سکالو پردې لاسوندوټیکاو نه مومي. | موضوع په دې د لایلو نه بنا کېږي. |

| | |
|---|---|
| جنګ د بدمرغۍ سرچینه ده. | جنګ د بدمرغۍ مبداء (منبع) تشکلیوي. |

- له تازه ناکره، خپرنیزو (ژورنالېستیکو)، هغه هم په زیاته کچه له اردو - انګرېزي ځپلې پښتو بېلګو ځخه:

| ناکره (اردو ځپلې پښتو) | کره |
|---|---|
| نواز شریف څوك چې د پاکستان پخوانی وزیراعظم دی، عدالت ته پېش کولی شي. | نواز شریف چې د پاکستان پخوانی مشروزیر دی، نیاوتون ته وړاندې کېږي. |
| د پاکستان د قومی اسمبلۍ سپیکر کراچی ته لاړو چرته چې فرقوی شدت تشدد اختیار کړی دی. | د پاکستان دولسي جرګې مشر کراچۍ ته ولاړ چې ګروهیز تاوتریخوالی پکې سخت شوی دی. |
| د وزیر خارجه پاکستان په مشرۍ کې یو وفد جوړېدلی شي. | د پاکستان د بهرنیو چارو وزیر په مشرۍ یو پلاوی جوړېږي. |
| په یکم مئی د مزدور کسان پارټی پاکستان جلوس ایستلی شي. | د مي پر لومړۍ د پاکستان د مزدورانو د ګوند لاریون تر سره کېږي. |
| په ضلع مردان کې بجلی چالو کېدلی شي. | په مردان ولسوالۍ (ضلع) کې برېښنا چالانېږي. |
| زه هېڅوك په اعتماد کې اخستل نه غواړم. | زه پر هېچا باور (ویسا) نه کوم. |
| یوه شاندار دستوره به جوړېدلی شي. | یوه پرتمینه غونډه به جوړېږي. |
| ... د پاکستان صدر جوړ کړی شو. | .... د پاکستان هېواد مشر وټاکل شو. |
| بېنظیره په انګلینډ کې پاتې کېدلی شي. | بېنظېره په انګلستان کې اوسېږي، یا استوګنه لري. |
| بدعنوانه بیروکرېټ نااهله و ګرځولی شو. | بدنام کارمند (له ټاکنو) بې برخې کړ شو. |
| یوه زنانه ګلوکاره نوې ګانې (ګانیانې) پېش کوي. | یوه سندرغاړې نوې سندرې وړاندې کوي. |
| یو کس د غلا په الزام کې ګرفتار کړی شو. | یو څوك د غلا په تور ونیول شو. |
| د پارټۍ یوه کارکنه د خپلې حلقې امېدواره ده. | یوه ګوندي غړې د خپلې سیمې نومولې (کاندیده) ده. |

| | |
|---|---|
| ستا د مدد شکریه ادا کوم. | ستا له مرستې مننه کوم، یا: ستاد مرستې مننه کوم. |
| د پاکستان د آبادۍ خانداني منصوبه بندي پاس کړی شوه. | دپاکستان دوگړمېشتې (نفوسو) پروژه ومنل شوه. |
| د مزاحمت تحریك په بره روان دی. | د ټینگار (مقاومت) غورځنگ پر مخ درومي. |
| د بهارت جارحیت کشمیریان نه شي برداشت کولی. | کشمیریان د هند تېری زغملای نه شي. |
| د فیصلې په حق (مخالفت) کې تقریر پېش کېدلی شي. | د پرېکړې د منښتې (نمښتې) په اړه وینا کېږي. |
| د دستاویزاتو تر مخه به په اندروني مسایلو ضرور عمل درآمد کېدلی شي. | د لاسوندو له مخې به پر کورنیو ربړو هرومرو چاریاغور کېږي. |
| د هشتگردي به په مزه مزه د ملك نه ورکه شي. | تر هگري به ورو ورو له هېواده ورکه شي. |
| هغه ته به خراج تحسین پېش کېدلی شي. | د هغه ستاینه به کېږي. |
| هغه قابل تحسین وگرځولی شو. | هغه د ستاینې وړ وگرځېد. |
| جدیدې سماجي (معاشرتي) زمه واریانې تسلیم کولی نه شم. | نوې ټولنیزې ژمنې منلای نه شم. |
| سامراجي استحصال او نوابادیت دې مرده باد وي! | پانگواکي(امپریالېستي) زبېښناك او ښکېلاك دې برباد وي! |
| د آبپاشۍ محکمه د بجټ د مشکل باوجود خپلې ډېو ټیانې په مخ بوزي. | د اوبه خور(اوبلگونې) څانگه (اداره) د پانگې (بودجې) له ستونزې سره سره خپلې دندې پر مخ وړي. |
| سکول د بېمارو د سواکېدو په وجه بند کړی شو. | ښوونځی د ناروغیو د ډېرښت له کبله وتړل شو. |
| د جنرل هسپتال د ډاکټرانو هرتال ختم کړی شو. | د عامه (ټولوال) روغتون د ډاکټرانو کار بندي پای ته ورسېده. |
| قیدیانو د اپیل خواست وکړلو. | بندیانو د بیا غور (استیناف) غوښتنه وکړه. |
| هغه ته یې د غمرازۍ اظهار وکړلو. | هغه ته یې خواخوږي څرگنده کړه. |

| | |
|---|---|
| زه په سماجي اقدارو (قدرونو) بحث کول نه غواړم. | زه پر ټولنيزو ارزښتونو نه غږېږم يا: زه نه غواړم، پر ټولنيزو ارزښتونو وغږېږم [پاکستان پښتو ليکوال داردو - انگرېزۍ په اغېزمنۍ دغه آر کړل (غوښتل) د مرستيالکړ په توگه هسې سرباري کاروي.] |
| د ملازمانو د بحالۍ دپاره کوششونه جاري ساتلی شي. | د کارمندانو د بيا ټاکنې لپاره هڅې روانې وي. |
| د حريت پسندو جنگرېز (جدوجهد) نور هم سوا کېدالی شي. | د ازاديپالو جنگ جگړه نوره هم زياتېږي. |
| د انتها پسندو اسلامي جماعتونو سربراهان گرفتار کړی شو. | د بنسټپالو اسلامي گوندونو مشران ونيول شول. |
| اغوا کړی شوی ټيچر رها کړی شو. | تروښلی (اختطاف شوی) ښوونکی خوشې شو. |
| زميندارانو نور پرست وغيره روغندار نباتاتي څيزونه پسنده يي. | ځمکوال نمر گلي او نورو غوړ بوټي خوښوي. |
| د نهې په ورځ به دوکانونه کولاو کړي شي او هر به څيز به ميلا و شي. | پر درېيمه (درېښۍ) به دوکانونه پرانېستل شي او هر څيز به تر لاسه شي. |
| دلته کې سرمايه کاري سرگرميانې چندانې نيشتې. | دلته پانگونيزې بوختياوې دومره نشته. |
| تانه دار د زور دارو جانبداري کوي. | تانه والا د زورورو پلوي کوي. |
| د ذرائع عامه تر مخه اهمې کاروايانی کېدلی شي. | د ټوليزو رسنيو له مخې غورې چارې ترسره کېږي. |
| د زرعي سکيم په حقله تجويز منظور کړی شو. | د کرنيز پلان وړانديز ومنل شو. |
| د حکومت پاکستان په حواله دعوام پسندۍ څه بحث نه شي کيدلی. | د پاکستان پرټولمنلتيا (وگړنيتوب) څه خبرې نه شي کېدای. |
| وزير خارجه پاکستان په عالمي مسلو کې دلچسپی نه اخلي. | د پاکستان د بهر نيو چارو وزير له نړيوالو سکالوو سره لېوالتيا نه لري. |
| اقوام متحده په مشرق وسطی کې اهم کردار ادا کوي. | ملگري ملتونه په منځني ختيځ کې غوره نقش تر سره کوي. |
| بن لادن د گردود بېمارۍ په وجه | بن لادن د پښتورگو (بډوډو) د ناروغۍ |

| | |
|---|---|
| مشکل سره مخ شوی دی. | له کبله له ستونزې سره مخ شوی دی. |
| په بنیادی طور باندې د ستهوډنټانو سره ښه سلوك نه کېږي. | له شاگردانو (زده کړیانو) سره له آره ښه (سم) چلند نه کېږي. |
| ملاعمر د پټې د خپل ځای نه لا درکه (لاپته) شوی دی. | ملاعمر له خپل پټوني ځخه تری تم شوی دی. |
| وزیر صحت پاکستان د ریډیو اسلام اباد نه براه راست یو ضروري پیغام نشروي. | د پاکستان د روغتیا وزیر د اسلام اباد له رادیو ځخه یو اړین پیغام نیغ پر نیغه خپروي. |
| د تعلیمي محکمو کې تحفظ نه مېلاوېږي. | په ښوونیزو ځانگو (ادارو) کې خوندیینه نشته. |
| د وزیر ثقافت اهلیه (ټبر، کور، بېگم) په حق اورسېده. | د فرهنگ (کولتور) وزیر مېرمن مړه شوه (له نړۍ سترگې پټې کړې). |
| کابل ته ورغلي د استرالیا ډپلومېټان اسلام آباد ته واپس شو. | کابل ته ورغلي استرالیایي دېپلوماتان (بیرته) اسلام آباد ته ستانه شول. |
| د یوولسم ستمبر د بریدونو سره تړاو لرونکی یو دهشتگرد گرفتار کړی شو. | د سېتمبر د یوولسمې د بریدونو اړوند ترهگر ونیول شو. |
| دېره لرونکو کسانو د عدالت قرارداد تسلیم نه کړلو. | گرمو کسانو دنیاوتون پرېکړه ونه منله. |
| د زلزلې کور ړنگونکې غمېزه ختمه شوه. | د رېږدلې کور گډې بخوله پای ته ورسېده. |
| د لویدیځ ښاریان په کابل کې نیولي شوي دي. | د لویدیځ هېواد وندان (تبعه) په کابل کې نیول شوي دي. |
| د ملك صدر یوه خوشخبري پېش کړه. | هېواد مشر (ولسمشر) یوزیری وړاندی کړ. |
| هغه په ریډیو او ټي وي یو اهم بیان جاري کوي. | هغه په رادیو او تلوېزیون کې یوه ارزښتمنه وینا کوي. |

[کښېني لیکوال او ژورنالېستان او د دوی په لاروۍ نور ټولیز پښتانه د انگرېزي «on» په پېښو په تېلفون، تېلوېزیون، راډیو... کې د غږېدلو لپاره د (په - کې) پر ځای "په" کاروي او په سرچپه ډول "په مشری یا صدارت کې"، "په تعداد یا شمېر کې" هسې بېځایه "کې" سرباري کوي چې د نورو بېخرته پېښو په ځېر په لره بره گړنۍ پښتو کې کوم بنسټ نه لري].

## دویم - په غږپوهیزه مورفولوجیکي(صرفي) برخه کې:

۱۶- **استل** د دویم ډبرګړي پایله - است یا - ست او - واست باید د- یئ، استئ، یاستئ اوویئ پر وړاندی معیاري ګڼل په کار دي.

۱۷- د **تېرمهال کړ** د دربیم یوګړي نرینه پایله باید صفر او زورکی غوره وګڼل شي، لکه: وخوړ، ولیکه. دغه راز (وبله)، (وګڼه)، (وپیژند)، تر (وباله)، (وګاڼه)، (وپیژاند یا وپیژانده)... کره راځي.

۱۸- (دی) ((**په زور والا**)) ی ((باید د ((د)) او ((دئ)) پر وړاندې د دربیم نرینه وګړي معیاري روستاړي وګڼل شي، لکه: زلمی راغلی دی، دی زلمی دی، دغه راز د ختیزې پښتو دواز خپلواك (é) پر وړاندی هم.

۱۹- وو (په اوږد- و) د لر تېرمهالکړ د دربیم نرینه وګړي او (وه) یا (ول) د دربیم جمع نرینه وګړي لپاره باید معیاري وګڼل شي.

۲۰- **نا بشپړ تېرمهالکړ** د دربیم نرینه وګړي روستاړی باید د بشپړې هغې په څېر صفر او زورکی اوسي، البته بې له کوم مختاړی ((و)) لکه: زلمي ناك خوړ. سنك راته، د خوړې، خوړلو، خوړو، راتلې، راتلو او داسې نورو پر وړاندې.
۲۱- «**خوړلای**» باید په بشپړ او نابشپړ تېر مهال کې د توانې او ارمانې اړخ یوه معیاري بیلګه ومنل شي، لکه ومې خوړلای شو. کاشکی مې وخوړلای، خوړلای می شو، کاشکې مې خوړلای یا د(ل) په غورځونه (خوړای).

۲۲- (**خوړل**) باید په ټولو بېچارو کړو کې یوه معیاری بیلګه وګڼل شي، لکه وخوړل شو (شول، شوه، شوی...)، خوړل شوی دی (دي، ده، دي)، خوړل شوي ول (شوې وه شوې وي...) خوړل کېده (کېدل، کېده، کېدی...).
خوړل کېدای شو(شول، شوه، شوې...)، یا خوړل کېږی. و به خوړل شي او نور.

۲۳- (زور) باید د (زورکی) پر وړاندې معیاري ښځینه روستاړی ومنو او ډبرګړی یې اوږده -ې، چې تیاره، خوله، ویاله،... په بیدودو (استثناوو) کې راځي، زورکی به په ټولیز ډول یو نرینه روستاړی وي، لکه پسه، زړه، تره، وراره. همداراز باید مفرد ښځینه نومونه، لکه وله، ونه، غنه، ستنه د اوږدې ((ې)) په روستاړی ومنل شي.

۲۴- هر (زور روستاړی والا) ښځینه نوم باید په اوږده (ې) جمع او مغیره کړو، لکه دوې ښځې، د یوې ښځې. داسې نه، لکه په کندهاري ګړدودکې چې د ناخجنۍ په ترڅ کې یو دا راز ښځینه نوم په لنډه (ي) جمع یا مغیره کوي او د خجنتیا په ترڅ کې یې بیا په اوږده (ې)، لکه لاري (راه ها) او لارې (نغمه ها).

۲۵- زور کی واله (ی) باید یوازېنی معیاري ښځینه روستاړی وګڼو، نه نرینه. لکه په کندهاري ګړدود کې لیکونکی د نرینه لپاره زورکی والا «ی» او د ښځینه لپاره په لنډه «ي» او دغه راز د (راغلئ دئ) دوارې (یاوې) زورکي والې وایي او لیکي.

۲۶- هره زور واله (ی) نرینه روستاړی وګڼو او ډېرګړې او اوښتې بڼه یې بیا په لنډه (ي)، لکه: سړی - سړي اولښتی - لښتي نه سړی، سړیان اولښتی، لښتیان.
«غویی»، «خوریی» او «ویی» کېدای شي، دوې او درې ډېرګړې بڼې ولري، لکه : غویی یا غویان، خوریي یا خورییونه او کله هم خورییان، ویی ـ ویي یا وییونه.

۲۷- په پارسي یا عربي پېښو پښتو شمېر نومونه جمع کول نامعیاري دي، لکه: سلها، زر ها، په سلهاو، په زر هاوو، د (سلونه، زرونه یا سلګونه، زرګونه...) پرځای یا سرحدات (سرحدونه)، رودات (رودونه)، جنګلات (ځنګلونه)، چتیات (اپلتې) او داسې نور.

۲۸- (پاته)، (تول)، (لږ)، (ښه) او داسې نور صفتونه باید د وګړي، ګڼې او نوږي له مخې له موصوف سره سم ګردان شي، نه لکه لږ اوبه، توله خلك، پاته هلکان، ښه (په زور) ښځه، ښه (په زورکي) سړی...
همدارنګه (دواړه) او (واړه) باید د ځینو ګړدودو په لاسوند د نوږي او پېر له پلوه سم ګردان شي.

۲۹- اوږد «و» باید د مغیره جمع روستاړی اوسي، لکه د خلکو، چې کندهاریان یې په لنډ (و) وایي. دا راز (اوږد) مغیبره «و» باید د «نوم» په ستې پورې سیده ونه نښلي، لکه له (سړی) څخه (سړو)، له (کورنی) څخه (کورنو)، له (پېړی) څخه (پېړو)، له (پی) څخه (پو) ... چې یې له نورو وییو سره ګډون راځي. البته که د ګډون ویره نه وي او رواني پېښوي، نو (ی) غور څول دومره نادوده نه برېښي، په تېره په شعر او وینا کې.

۳۰- هر نوم یا صفت چې له فعلي بنسټ سره یوځای کېږي، باید په وسمهال کې د ځوانېدل، ځوانېږي او ځوانول، ځوانوي په بېلګه ګردان شي، نه د ځوان کېدل، ځوان کېږي او ځوان کول، ځوان کوي په بیلګه. په دې ډول ورسره باید پیلېدل، پیلېږي او پیلوي یا مخامخېدل او مخامخول هم قیاس کړو، په

بله وینا، د (کېدل) او (کول) پرځای (ېدل) او (شول) معیاري وګڼو. یوازې په هغو برخو کې له داسې لنډیزه کار وانه خلو چې مانا بدلوي، لکه له اړ ځخه اړول چې مانیز بدلون پېښوي. دغه راز له کونډ او کونډې ځخه (کونډېدل) او (کونډول) جوړولای شو، مګر له ډېره یا تیږه ځخه ډبرېدل او تیږېدل نه. له همدې کبله تر (پاتې کېدل) ځخه د (پاتېدل) ګړدود معیاري ارزښت لري. هرګوره، د وردګو او ځېنو نورو کرلاڼیو خوشې – خوشیول، ستړی – ستړېدل ... ټولیزېدای نه شي.

۳۱- ځانګړي- تولنومځري، لکه: (زما دا) د وګړي، ګڼې نوږي او پېر (شخص عدد، جنس او حالت) له مخې باید پوره ګردان ولري او هغه هم د دواړو توکونو په پام کې نیولو سره. په دې توګه به یوازې (زما دا) نه، بلکې زما دوی. زما هغوی... ستا دا. ستا دی ستا دوی، ستا هغوی... هم لیکلای شو، ځکه دا یوه ژبنۍ سپمایي ځانګړتیا ده.

۳۲- د ملتیا او اشتراکیت یا ټولوال ضمیر باید په ځو ډولونو کې لږ تر لږه یو دا معیاری وګڼل شي، لکه: زلمي دوی، زلمي ډلې - دلې، زلمي ګلې... .

## درېیم - غږپوهیز (فونولوجیکي) معیاري اړخونه:

۳۳- معیاری پښتو ټول ۳۶ غږونه لري. (ء) او (ق) چې په ځېنو ختېزو ګړدودو کې دود لري او د پردي اغېز ښکارندویي کوي، ورسره معیاري ونه ګڼل شي. په دې توګه باید (چکړې)، (کلا)، (وکړه) ولوستل او ولیکل شي، نه (چقړې)، (قلا) (اوکړه) یا (ؤکړه) او داسې نور. دغه راز د ځ، ځ، ښ، ژ او (ږ) غږو نه پر، س ز، خ، ز یا ج او ګ وا نه ړول شي. په سرچپه ډول د (ز) پرځای (ځ) کارول، لکه ځوی - ځما - ځمور... هم کره نه برېښي.

۳۴- په معیاری پښتو کې باید «ښ» او «ژ» د منځنیو ګړدودو (لکه د وردګو یا اندړو) په وینګ او تلفظ ومنل شي. ځکه یو څه زیاتوالی لري او بل په را دیویي خپرونو کې لږ تر لږه د «ښ» دا همداسې دود شوی دی. د ساري په ډول هلته له کندهاریا نو پرته نور ټول خبرلوڅان (ښ) له همدغه منځني وینګ سره سم د (ش) او (خ) تر منځ تلفظوي.

۳۵- په سوېل - ختیزو ګړدودو کې چې الف پر اوږده (و) یالنډ (و) او هغه پر اوږده (ې) یا لنډه (ي) اوړي، باید معیاري ونه ګڼل شي، لکه ځدران چې وایي : میږ په کېر کې کور کړي (موږ په کور کې کار

کړو.

۳۶- يولړ وييونه چې په ځينو ګړدودو کې يې د غږو نو اوډون يو راز او په ځينو کې بل راز دی، بايد هماغه ډول ته معياري ارزښت ورکړو چې يا يې تاريخي لرغونتوب زيات وي. لکه کښل تر ښکل، کښته تر ښکته، خسا (خوسا) تر سخا، خسی (خوسی) تر سخی، خسر تر سخر، ځمکه تر مځکه، اسويلی تر اوسيلی، زولنه تر زلونه، پسرلی تر سپرلی، پښه تر ښپه، پښېمان تر ښپېمان، انګازه تر ازانګه، ولېشت تر لوېشت... او يا خو يې ويونکي زيات وي، لکه زمری د مزری يا امزری، غږ د ږغ، ورځ د روځ، اوربدل د اروېدل... پرورانده.

۳۷- اوږد ، ارت، اړخ، بوخت بايد په يو ځپيز ډول، معياري وګڼل شي، نه په دوه ځپيز ډول، لکه څنګه چې په لويديزو ګړدودو کې دود لري.

۳۸- چې، پورې، لاندې، باندې، وړاندې، غوندې، کې، هسې، داسې، دغسې، چيرې، پرې، ترې، يوازې، همدا راز نومځري تاسې، دې، يې... او دا راز نور وييکي بايد د ګړدودي زياتوالي له کبله په اوږده (ې) وليکل شي او ولوستل شي، نه په لنډه (ي).

۳۹- (موږ) بايد د ګړدودي زياتوالي له کبله د (مونږ) په وړاندې معياری وبلل شي.

۴۰- (زما) او (زموږ) دې دويونکو د زياتوالي په لاسوند په دوه ځپيز ډول معياري وګڼل شي، نه به يوځپيز ډول. په شعر کې يې دواړه بڼې جواز لري، ان (زموږ) درې ځپيز (زموږه) هم راتلای شي.

۴۱- نمسی يا نوسی، نمانځل، نمانځنه، نمارۍ يا نوارۍ، نمارل... د لرغونوالي له کبله د لمسي، لمانځل، لمانځنه، لمانځه، لمارې، لمارل ... پر وړاندی معياری ارزښت لري. مګر ماسپښين، مازيګر، ماښام او ماسخوتن همداسې (مفغن) د اسانتيا له کبله معياری پاتې شي. لمونځ او لمر دې بيا تر نمونځ او نمر، نور، مر يا مېر د ويونکو د زياتوالي او دودوالي له لامله غوره وګڼل شي.

۴۲- هغه، هسی، هغې، هماغه، هغومره... ترهاغه، هاسې، هاغسې، همغه، هاغومره ... اسان او روان برېښي او په کار دي معياري وبلل شي.

۴۳- «ته» خو د ((له)) یا «لره» پر وړاندې له وخته بیا معیاري منل شوی او کارول کېږي. (له) یا (لره) باید ګړنۍ او شعري ژبې ته پرېښوول شي، لکه څله یا څه لره.

۴۴- ولېدل تر لوېدل یا ولېږي تر لوېږي د عام منښت وړ بریښي او باید معیاری یې وګڼو.

۴۵- درول د ودرول پر وړاندې زیات ټولیز والی لري او د معیاریتوب پر آر برابر دي.

۴۶- موندل او بیا موندل باید د میندل او بیا میندل پر وړاندې معیاري وټاکل شي، او وسمهال ګردان یې مومم، بیا مومم، د میمم، بیا میمم پر وړاندې.

۴۷- اوبدل یا اوبل تر اودل هم تاریخي مخکیوالی لري او هم ګړدودي زیاتوالی، نو یې معیاري منل غوره دي. هرګوره، اودل یې تېرمهال انړول دی.

۴۸- (ژر، ژرنده، ژړل...) خود (زر، زرنده، اوزړل...) یا (زر، جرنده، جړل...) پر وړاندې لږو ډېر معیاری منل شوی او په کار ده همداسې منل شوي پاتې شي. همداسې ژامه د زامه پر وړاندې، که څه هم ګړدودي ډېروالی یې دومره نه دی.

۴۹- یوازې د یواځې او بیا ځې پر وړاندې زیات معیاري لاسوند لري، ځکه پر دې سربېره چې لږو ډېر ګړدودي دود لري، په اوسني لیکدود کې هم اسان او بې ګډونه راتلای شي.

۵۰- ځینې پور ویي چې د زیاترو پښتنو له خوا یې په څپو کې لنډون راځي، باید همغسې تلفظ شي، لکه نیاز یو څپیز، اختیار دوه څپیز او داسې نور. مګر داسې نه چې په سرچپه ډول لږ څپیز پر ډېر څپیز وواړول شي، لکه پلان چې له آره یو څپیز دی اوباید همداسې د معیاری پښتو ټوك وګرځي، یو څپیز عربي او پارسي درې کانسوننټه ویي بیا په سرچپه ډول په پښتو کې دوه څپیز کېږي، لکه شعر، جرم، علم، شرم، رزم، بزم، قدر، نذر، فضل، صدق، صبر، او داسې نور.

۵۱- هر راز پور ویی باید تر وسې وسې په لیك ولوست کې د معیاري پښتو تر دود لاندې راشي. دلته به یوازې قرآن او حدیث مستثنا وبلل شي یا ځینې ډېر دود ځانګړي نومونه، لکه افغان یا افغانستان چې له آره د"اوګان" او" او ګانستان" معرب بلل کېږي. د ځینو ژبو پورویيونو ته باید پام ولرو چې کېږي، یو نیم غږ یې د پښتو له غږونو سره سمون یا نژدېوالی ولري او خوندي یې وساتو، لکه الماني او روسي (ښ) او (څ) چې له پښتو سره ګډون لري. په دې توګه باید (مونشن) میونیخ - (مونښن)، (زوریخ) - (څوریښ) یا څوېریښ، (بارزل) - (بارځل)، زرابکیین) - (څرابکین)، (تزار یازار) - څار... ولولو

او ولیکو. دا چې ځینې په تېره کښیني پښتانه انګرېزي پورویبونه زیاتره په هندي وینګ وایي، ت پر ټ د پر ډ... اړوي، باید یو مخیز معیاري و نه منل شي، لکه ډاکټر چې آر لاتیني وینګ یې (دوکتور) دی او په کار دي، دوکتور یې غوره وګڼو، او په دې ډول نور اروپایي ویبونه هم همدا یو راز راپور شي، لکه د کلچر پرځای کولتور زیات دود موندلی دی. کوټ، بوټ او دا راز نورویبونه خو بیا زیاتره د پښتو غږپوهې تر اغیز لاندې راغلي او مستثنا ګڼل کېدای شي. همدارنګه اړ نه یو چې پارسی پر فارسی، پاړسي یا پاړسو، واړوو. جور د ځور، چراغ د څراغ په بڼه معیاری راځي «ځواب» چې زیاتره له سوال سره یوځای یو څپیز ویل کېږي، نو که همداسې په پښتو شوې بڼه معیاری ومنل شي، دومره به نادوده ونه ایسي. (زنجیر) باید د دود له مخې په (زنځیر) پښتو شي او د ورته غږو د ګاونډیتوب په اغیز سره (ځنځیر) ونه لیکل شي.

۵۲- ځینې پښتو شوي (مفغن) عربي پور ویي، لکه میرات، متل، مخنت، اتمان (عثمان...) دا کیلي پر لاس راکوي چې عربي، ص، پر، س واړوو او ث، پر، ت، خو بیا هم اړنه یو، دومره یې له پښتو(س) سره انډول کړو چې د ټکر لامل شي. همداسې پر(ز) د (ض) او (ظ) اړول درواخله.

۵۳- د پورویبو خجونه هم باید زیاتره د پښتو د خج پوهنې اړوند شي او هغه دا چې د نورو ډېرو ختیزو ژبو غوندې پښتو دې ته ډیره هڅه لري چې داروپایي یا نورو پورویبو پر وروستۍ څپې یاله وروستۍ څپې څخه پر مخکې څپه باندې خج راوړو، لکه لندن، واشینګټن، مکسیکو، کاناډا، یورپ، اتلانتیك چې په خپل ژبني قلمرو کې زیاتره په لومړي خج ویل کېږي، نه لکه د لرو پښتنو غوندې چې هماغه اردو او انګرېزي وینګ او خج یې راټینګ کړي دي.

لویدیزیان هم زموږ ختیز ویبونه او نومونه د خپلو ژبو له دود سره سم په لومړي او یا دویم خج تلفظوي، لکه کابل او افغانستان. مګر که هغوی زموږ ویبونه زموږ په خج ووایي او موږ د هغوی ویبونه د هغو په خج، لابه ښه وي.

۵۴- د دربېیم وګړي نژدې جمع ضمیر (دوی) باید په لنډ (و) معیاري وګڼل شي، که نه له یوه بل ویې (دوی) سره یې ګډون راځي چې په پښتو قاموس کې په دستور، قانون او آئین مانا شوی دی.

۵۵- کښېنا ستل د کښېنوستل او کښېناستیدل پر وړاندې د معیاري کېدووړ برېښي.

۵۶- ځینی پښتانه چې په بخښل کې د بخشیدن (خ) نه غور ځوي او په همدې اغیز نخښه وایي چې له پارسي نشان سره اړیکی لري او پښتو شوې بڼه یې نښان دی، نو بخښل د نښه په اغېز ښښل هم اسان

دی او هم زیات دود لري، په کار دي، ننښه او ښښل معیاري وګڼل شي. همدا راز تر خوښینه، ښینه زیات معیاری ارزښت درلودای شي.

۵۷- ښوول، کېښوول، پرېښوول... باید د ښودل، کیښودل، پریښودل... کېښوستل، پرېښوستلیا ښیل، کېښیل، پرېښیل... پر وړاندې معیاري ومنل شي.

۵۸- ښوونځی او پوهنځی د ښځینه بڼې ښوونځۍ او پوهنځۍ په پرتله زیات معیاری ارزښت لري، ځکه اروابناد الفت خبره زموږ په کولتور کې نارینه تر ښځې له مخه ځي، په دغه لړ کې ټولی او ټولګی هم همداسې نرینه کره راځي.

۵۹- دا چې په پښتو غږ پوهه کې په ټولیز ډول تر پېښ، زورکی او تر زېر زور اسان ویل کېږي، نو باید په معیاری پښتو کې هم دا آر په پام کې ونیول شی. تر هغې چې ګډون نه راشي. او د ټکر ډار نه وي. د ساري په ډول که په پندانه کې د زورکي پرځای د لنډ (و) په ګړدود معیاري وګڼو، اساني به ولري، بې له دې چې له بلې کلمې سره یې ګډون راشي. خو که یې په زورکي پیل کړو، بیا «پنبه دانه» نه، بلکې (میرګن) مانا ورکوي.

۶۰- د ځینو فعلی اوړونونو (ګردانونو) په وسمهال برخه کې د فعلي ولۍ وروستۍ (ت) په (ځ) ښوول معیاری ګڼل کېدای شي، نه په (ز). ځکه ګړدودي استناد یې په هر ډول، مګر اوسنی دودوالی یې هم ارزښت لري، لکه وځي د وزي، پریوځي د پرېوزي، پرځي د پرزي، غورځي د غورزي... پر وړاندی.

نو د دې لپاره چې رښتیا یوه قاعده مو ترلاسه کړي وي او په دې توګه مو د یوې ګرامری ګډوډتیا مخه نیولې وي، نو په کار دي، په داسې فعلونو کې د (ز) پرځای (ځ) وکاروو، لکه له (تلل) څخه (ځي) له (پرانیستل) څخه (پرانیځی)، له (پرېمینتل) څخه (پرېمینځي) او نور په ساتل، نتل، کتل... کې خو بیا ببخي د (ز) او (ځ) پوښتنه نه راپورته کېږي. هرګوره (ختل) پر (خېژي) او (کوتل) پر (کوژی) اوړي. ګرځېدل هم تر ګرزېدل ډېر لیکنی دود لري.

۶۱- په (وکړي اووکي) کې فونولوجیکي پوښتنه نه راځي، بلکه په دوو بیلابیلو لیکزیکي (لغوي) ډولونو پورې اړه لري، یو له (کړل) فعل سره اړه لري او دا بل یې له (کول) یا (کلل) سره. که په ویې پانګه کې (کړل) غوره وګڼل شول، نو (. کړي) به غوره وي او که (کول) یا (کلل) غوره وګڼل شول، نو (وکي) به غوره وي او که (کړل) او (کول) یا (کلل) دواړه معیاري ومنل شول، نو وکړي او وکي به هم ورسره غبرګ معیاری منل کېږي. کاندې یا کانې یې لا نور ګړدودي ځېلونه بلل کېږي، خو د معیاری کېدنګ ارزښت

يې لږ ښکاري. که موږ په رښتيا سره يووالی د معياري والي بنسټ بولو، بايد له دغو څو ډولونو څخه يو وامرو او په ټولو زمانو کې يې بشپړ گردان کړو، يا لږ تر لږه د سوپلاتيف په ډول يو تېرمهال ته پرېږدو او بل يې وسمهال، په بله وينا، يو بشپړ او بل نابشپړ مهال ته، بيا نو پخپله دې پرېکړې ته رسيږو چې (وکړي) ووايو او که (وکي).

۶۲- (زما، زموږ، ستا، ستاسې) د دما، يما، دموږ، دتا، يتا، يا د ستا د تاسې يېتاسې يا دستاسې) پر وړاندې ارزښت لري او لکه څنگه چې يې تر اوسه دود هم موندلی دی. البته، لکه له مخه چې وويل شول، له ستا پر ته دا نور بايد يو ځپيز نه، بلکې دوه ځپيز وويل شي، په شعر کې البته د دواړو ډولو جواز شته.

۶۳- اېستل تر ايستل او ويستل نه زيات دود لري او بايد غوره وگڼل شي.

۶۴- چونگښه په لنډه (و) د چينډ خه او ځينگښه پر وړاندې تاريخي لرغونتوب ښيي، نو بايد په معياري پښتو کې ونيول شي. همدا راز د ورسره د چونگاښ او البته چونگښ (بقه کلان)گڼ آری بللای شو چې ښايي د چونگ له اواز نه يې سرچينه اخېستې وي
.

## څلورم - د ليك دود معياري اړخونه:

۶۵- ليك د ژبې کوم ټوك او جزء نه چې تش يو انځور دی. د ژبی اومه توکي غږونه دي او د ليك دا توري، يا په غونډه نوم ابيتې يا ابيخې. بشپړليك هماغه دی چې د يوې ژبې د هر يووستوي غږ لپاره يوه نښه (توری) ولري. داسې ليك ته غږ ليك يا فونيميك ليك يا ابېخې (الفباء) ويل کيږي. مگر د نړۍ په ژبو کې يوه دا هم هېڅ دا راز ليك نه لري. لاتيني يوناني، الماني، روسي يا تورکي ليکونه ورته په پرتليز ډول يو څه ورنژدې دي، که نه د نړۍ زياتره ليك دودونه نيمگړي دي. د دې پرځای چې د هر غږ يا اواز لپاره يو توری ولري. يوې ځپې (هجا) يا کلمې لپاره يو ه نښه يا توری لري. پښتو ليك چې له آره عربي ليك دی او يو څه لاس پکې وهل شوی دی، له نيمگړو ليکونو څخه گڼل کېږي. په دې چې له (الف-و-ی) نه پرته نورو خپلواکو (واولو) غږونو لپاره پکې نښې نښانې يا توري نشته او هغه هم په هرځای کې نه کارول کېږي. د ساری په ډول (لور) د (دختر، داس او رحم) په مانا يو راز ليکل کېږي.

له دې کبله زموږ اوسنی ليك ريفورم لا څه چې بېخی يوه اوښتون ته اړتيا لري. هغه دا چې يې بېخي ابيخې واوړي او د عربي تورو پرځای نړيواله فونيميکي الفباء رامنځ ته شي چې که څه هم بنسټ يې لاتيني الفباء ده مگر لږو ډير له نورو ليکدودونو او ځينو نورو نښو نښانو څخه پکې کار اخېستل

شوي دی، لکه (خ) او (غ) دا يې يوناني توري دي او د ډ، ټ، ړ، ڼ او داسی نورو لپاره تر لاتيني ( n, r, t, d) لاندې ټکي ايښوول کېږي.

په دې توګه د اوسنۍ پښتو الفباء په چوکاټ کې مو پر ليکدود باندې هر راز وييني(بحثونه) او څيړنې تل يو سر خوړ دی. ځکه دلته بايد د توپير آر و پالل شي او په دې ډول هېڅ ويي سره يو راز ونه ليکل شي، حال دا چې د الفبا له نيمګړتيا سره دا خبره کيدون نه لري. د ساري په ډول څنګه کولای شو، (سره) د(مع، سرخ، سره زر او کود) دری واړو مانا وو لپاره راز راز و کاږو.
خو دا چې زموږ د ليك ريفورم يا اوښتون د هوسۍ په ښکر کې دی او يو وخت غواړي، لومړی ورته پخپله پښتانه راوڅکېږي او بيا ورته لارې چارې وپلټل شی، نو سم له لاسه اړ يو، د همدې اوسنۍ ابېځې (الفبا) په چوکاټ کې يې پر معياری ليکدود باندې يو څه رڼا واچوو، چې که د معياری پښتو پوره انځور ونه شي کړای، د يووالي، يورنګوالي او اسانوالي، او له دې سره څه نا څه د التباس د مخنيوي د آر او اصل سلنه (فيصدي) خو لږه لوړه يووړلای شي. له بلې خوا مو څنګه چې د معياري پښتو د اختلاف وړ ګرامري او نور اړخونه تروسې وسې پورې نښه کړل او په دې توګه ورسره ډېر ليکدودي معياري اړخونه هم په ترڅ کې وښوول شول، نو دلته يوازې په هماغه ربښتينو ليکدودي هغو بس راوړو. د ساري په ډول پر (چې - چه) او (کښې - کې) غوندې د غړپوهنې په برخه کې خبرې شوې دي او بيا اړنه يو، چې د اروانښاد خادم غوندې پرې د ليکدود يا «پښتو تصيفی» ترنامه لاندې کلونه کلونه د خپرونو مخونه ډك کړو، بلکه زيات هاند به مو دا وي چې په کوم جادو او چل ول سره کولای شو، څه مو چې په غړپوهنه کې معياري ښوولي او ټاکلي دي، په ليکدود کې راښکاره کړو. په دې ډول به تر هرڅه له مخه د ټته ټينګ پام ولرو چې څنګه له دوه دروخپلواکي ننښو (و_ا_ی) څخه ښه ترا او ډېر ترا ګټه واخېستلای شو.

۴۶- په پښتو کې د پارسي، اردو، انګرېزي... ژبو پرخلاف د عربي پېښ، زېر، ء او اوږد الف (ممدوده آ) فونولوجيک انډول نشته او پښتانه يې اړوند ګډ يا پورويېونه هم له خپل پښتو وينګ سره برابروي او پر («اوږد» و، «اوږده» ي يا «لنډه» ي، لنډ الف...) يې اړوي، لکه: ګمان- ګومان، دکان- دوکان، کنر- کونړ، کندز- کوندز ياکوندوز، بن- بون، کلتور - کولتور، ارګان-اورګان، رمان- رومان،فلم- فېلم، فزيک- فېزيک ،ګله- ګېله يا ګيله، ريالست- ريالېست، آزادي- ازادي،آفسر- افسر، لائق- لايق... . په دې توګه دا وروستی ليکدودي بېلګې کره بلل کېږي:
-[د پېښ پرځای«و»]: خوله، لومړی، غونچه، ګوندې، ګومارل، ګوربت، ګورت، اوشنل، کومک، کولمه، دورمه، پوخلا، ګورګورې، اوتاک (اتاق يا اطاق)، بوګاښ، اوتمانزی، اوتمانخېل، اخون، پومبه، پوندانه، کونړ، کوندوز...، خوځېښې ديني او ډېر دود وييونه استثناء ګڼل کېږي، لکه: خدای،

بنیاد، استاد، گناه، گل، گلاب، گلالی، گلورین، گلباغ، سوروتال، سورنی، اردو...، که له دیني نومونو پرته نور له «و» سره ولیکو، خپل لیکدود به مو نور هم کره کړی اوسي، لکه: ذره - دوره- خم- خوم، تخم- توخم، خرما- خورما، ارزگان-اوروزگان، ارگون- اورگون، ختن- خوتن، ترک- تورک،مغل- مغول او داسې پسې نور.

-[د زېر پرځای «ې» یا «ي»]: اېزگي، اېنځر، پېنځه، پېنځوس، برېښنا، څېرمه، هېنداره، هېنډه، اېنده، امېد، پېیل، پتېیل، تېیل، ټوکرېیل، څوکرېیل ... .

- همداراز په ښویېدل، تویېدل، لویېدل او داسې ورته وییونو کې د کنسونتنې (ي) او واوېلې اوږدې (ې) یا لنډې (ي) توپیرول په کار دي، بلکې...، ټېکېټ، تېلېفون یا ټېلېفون (لرغږون)، تېلوېزیون (لروینون)، اېمپراتور، اېټالیا، دېموکراسي یا ډېموکراسي، رېکارډ، انټرنېټ، دېټا، وېب سایت... .

افغا نستان ، پاکستان ...،هرات، هند و سند او داسې نور له ډېرې دودتیا او نومورتیا استثناء بلل کېږي. په (- ستان) وال نومونو کې تاجیکستان، وزبېکېستان، تورکمنیستان، قرغېزیستان، قزاقیستان، انگلیستان... هم همداسې لږو ډېر تازه رادود شوي دي. برلین هم د پارسي یا انگلېسي وینگ تر اغېز لاندې(برلن) لیکل په کار نه دي.

- [د آ پرځای ا]: ازاد، ازادي، ارام، ارامي، اسوده، اسان، ارمان، ازار، ازمون، اشنا،اواز، اوازه، اباد، ابادي، اخور، ادم، ارزو، اسیا، اسمان،اغا، اگاه، الو، الوبالو، اینه، اهنگر،ارتېست، اژانس، انتن... . داچې په کره پښتو کې آس، آر، آره، آړ، آړه، یا آریا، آریانا... په مد کښل کېږي، د عربي، پارسي، انگرېزي د مد هومره لوړ نه ویل کېږي،بلکې له نورو الفونو سره د توپیر له مخې لیکل کېږي، نور ټول پښتو سرالفونه د زور یا فتحې هومره وینگ لري او په دې توگه یې «لنډ الف» نومول په کار نه دي.

۶۷- ځانتني عربي توري (ث، ح، ص، ض، ط، ظ،ف، ق) باید له قرآن و حدیث او نورو سپېڅلو دیني دخیلو وییونو پرته د پښتو فونولوجۍ تابع شي او له پښتو وینگ سره سم به پکې ص او ث پر- س، ض او ظ پر- ز، ف پر - پ، ق پر- ك، ح، ع او همزه پر یوه خپلواك (a) اوړي او یا به بیخي غورځول کېږي، لکه سوله، سلا ، تمه، شمه، او سون، خلك... چې آرې بڼې یې صلح، صلاح، طمع، شمع، افسون، خلق... دي. تورخم - طورخم، توپان - طوفان، کلا- قلا یا قلعه، دوتر - دفتر، کوندوز یا کندوز - قندز، او زار - افزار یا ابزار، کندهار - قندهار، پارسی - فارسی، مانا - معنی... لیکل خو ځکه بېځایه دي چې آره یې آریاني، په بله وینا، پښتو جوته شوې ده.

۶۸- د (ڼ) غږ یو یوستوی غږ دی او باید د (نړ) په بڼه چې دوه توري دي، ونه لیکل شي، که نه (کوڼ) له (کونړ)، خوڼې له (خونړې) او داسې نورو وییو سره هرومرو ټکر راولي. همداراز د نورو غبرگژبو،

لکه ټ، ډ، ړ توري همداسې یووستوی معیاري وګڼل شي، نه د اردو په پېښو پرت، د، ر باندې (ط) په سر باري کولو.

۶۹- د (ګ) غږ د پارسي او پښتو ترمنځ ګډ دي، نو که همداسې ولیکل شي، څه پروا به ونه لري. دا چې ځینې یې د غبرګژبو غږونو توریو غوندې د (ك) په کړۍ (ګ) کولو غوره ګڼي، یو بې سروبوله کار دی، ځکه (ګ) د (ب) غوندی یو ساده غږن تم (انسدادي) غږ دی. هو که هسې په نومونو، سرلیکوکې د ډول او رنګارنګۍ لپاره کله په کړۍ (کونډه) وکښل شی او کله د پارسي غوندې، دومره به بې دوده نه وي، خو په ټولیز ډول په هر راز لاسي یا ماشیني (کمپیوټري...) لیکنې سېستمونوکې ګ هم کره او هم ارزان او اسان راځي.

۷۱- ځینی پردي ځانګړي نومونه، لکه څنګه چې د غږپوهنې په برخه کې ورنه نغوته وشوه، ترکومه ځایه چې خپله پښتو غږپوهه اجازه راکوي، باید له اصل سره سم وویل شي او هماغسې ولیکل شي. د ساري په ډول چارلس او په همدې یوه بڼه دودلري، په ورځپاڼو کې چاپېږي او له رادیو تلویژیون نه اورول کېږې، بې له دې چې پر آره یې سوچ وشي. همدارنګه ریچارد چې په الماني، انګریزي، پرانسي او نورو اروپایی ژبو کې یې لیك دود یوراز دی، مګر وینګ یې بیلابیل لکه مېکاییل په روسۍ او المانۍ کې (مېخاییل) ویل کېږي، په پرانسي کې مېشل او په انګرېزۍ کې مایکل یا یوسف په روسۍ او المانۍ کې یوزف، په پرانسۍ کې ژوزف، په انګرېزۍ کې جوزف او په اسپانۍ کې خوسف. په دې لړکې د ګاډي ځغلونې الماني اتل «شومخر» په کارنه دی، په انګرېزي پېښو ((شومکر)) وویل شي او ولیکل شي.

۷۲- د (ونکی) روستاړي والا ویپونه باید له معیاري وینګ سره سم ولیکل شي. که څوك یې په لیکلو کې ټکنې کېږي چې چېرې یې یو (و) را ځي او چیرې دوه واوه، نو د داسې ویپو کړسته دې په پام کې نیسي، په بله وینا، له مصدري بڼې یې (ـل) وغورځوي، له پاتې کړستې سره (-ونکی) ونښلوي چې که هلته هیڅ (و) نه وو، له مخه بل (و) نه راځي. لکه له (لیکل) نه (لیکونکی)، له (څټل) نه (څټونکی) له (وبربدل) نه (وبربدونکی). که کړستې له ځایه یو (و) درلود، نو بیا په دوه (واوو) راځي، لکه : له (خپرول) نه (خپروونکی)، له (ټولول) نه (ټولوونکی) له (خرڅول) نه (خرڅوونکی). په دې لړ کې داسې کړونه (فعلونه) هم شته چې تر مصدري روستاړي (ل) له مخه دوه (واوه) له ځایه لري، نو د (-ونکی) روستاړي په نښلو لو سره یې باید اړوند فاعلي صفت په منځ کې درې (واوه) ولري، لکه له (ښوول) نه (ښووونکی) او له (پوول) نه (پووونکی). مګر دا چې دویم (واو) پکی دومره څرګند نه ویل کېږي او څوك یې نه تلفظوي، نو لیکل یې هم اړین نه دي او باید په دوو واوو (ښوونکی) او پوونکی لیکل یې معیاري ومنل شي، کېښوونکی او پرېښوونکی هم همداسې درواخله.

۷۳- د ووت، ووت یا پریووت، پریووت یا پریوت تر منځ پریکړه باید لومړی په صوتي او صرفي برخه کې وشي اوهغه دا چې هرڅنګه په ګردان کې معیاري ومنل شي، نو هله به څرګنده شي چې په پورتنیو ویېیونوکې څوڅو (واوه) ولیکل شي. د لیکو نکي پر وړاندې خو (ووت) او پریوت زیات معیاري ارزښت درلودای شي، ځکه دا یو له فعلي ریښې وت او مطلقې ماضي مختاړي (و-) څخه منځ ته راځي او په دې ډول په دوو (واوو) ټیک راځي او دا بل له فعلي ریښې (وت) څخه د یوه مخکړ یا فعلي مختاړی (پرې) په ملګرتیا جوړېږي او په هیڅ کوم ګړدود کې یې د بشپړ تېرمهال (مطلقې ماضی) د مختاړي (واو) څرك نه لګېږي، په بله وینا، په هماغو فعلو کې راځي چې داسې مختاړي ته هډو اړتیا نه لري، نو باید صرفي جوله یې پریوت معیاري وګڼل شي او لیکدود یې هم همداسې معیاری راشي.

۷۴- یوځای یا جلا لیکل نن سبا دا هم یوه لیکدودي ربړه (پرابلم) ګرځیدلی دی چې کوم ویې سره یوځای ولیکل شي او کوم سره بېلابېل په دې برخه کې باید لږ تر لږه درې آره او اصله له پامه ونه غورځوو: یو دوینګ او کښنګ تر منځ نژدیوالی، دویم د التباس مخنیوی او درېیم لاسي او تخنیکي اسانوالی دی چې کله د همدې درو آروتر منځ ټکر هم پېښېږي، د ساري په ډول (پخپله) د ټینګار کړول او بیا ناوړوني ویې په توګه یوځای لیکل کېږي. پر وړاندې یې (په خپله) لکه (په خپله خوښه) یا (په خپل کور کې) دغه آرونه نه پرځای کوي، نو جلا لیکل یې په کار دي. همداسې (پخوا)، (ځانته)، (مخکې)، (پکې)، (لپاره)، (خپلاسی)، (خپلمنځي)، (خپل خوښی)، (لاسلیك)، (نوملیك)... درواخله. په دې لړکې (مه)، (نه) له (خدای مکړه) او (خدای دې نکړي) پرته له کړستې سره نښلول پر دروګونو آرونو سم نه خېژي، خو مخکړونه (پرې، پورې...) بیا ورسره معیاري راځي، لکه په پرېوتل، پورېوتل، کېښناستل... کې.

۷۶- ځینی پښتانه په خپل دې ګومان چې وینګ او کښنګ یې سره نژدې کړی اوسي، اوچتوی - او چته وی، ګرځوی - ګرځه وی، وکړی - وه کړی او داسې نور لیکي او دېته یې سوچ نشته چې همدغه زیاته کړې نښه یوازې د زور یا زورکي تر منځ ګډه نه، چې له کا نسوننتې (ه) سره هم ګډون لري. نو له دې پرته چې دود شوې لیکدود نور هم په شخړه کې واچوي، کوم لیکدودي ریفورم ورته ویلای نه شو. البته د (سوچه والي) غوندې ویېیو کې چې د "چه" او "و" یو ځای کول، نه یوازې دود نه لري، چې د التباس مخنیوی هم کوي. د (سوچه) ترڅنګ (سوچ) یو بل ویی دی چې (قاطع) مانا لري.

یادښت:
داهم د هغو سلگونو لیکونو یوه تازه بېلگه چې لیکوال د یوې پښتو- کره لیکنې پښتو په اړه له درو لسیزو راهیسې بېلابېلو لیکوالو، خپرندویانو او چارواکو ته استولي او یو مهال به په ((سپین لیکونه)) ټولگه کې خپاره شي( اکسفورډ ، اپرېل 2006):

اکسفورډ ،اپرېل2006

## د پښتو ژبې او فرهنگ رښتیني خدایي خد متگار امام الدین ساپی صاحب او منلی فرهنگیالی قتیل صاحب،

تر مینه وړو پېرزوینو وروسته:
د نورو ډېرو غونډې ماته هم د لمر په څېر څرگنده ده چې ستاسې.مرکز د هېواد او سیمې پرکچ د یوې رغنده فرهنگي سیالۍ لپاره را منځته شوی او تر هرڅه له مخه په دې مخه او موخه چې د نړۍ له کاروانه په کروړونو کروړه وروسته پاتې پښتو ژبې او پښتني ټولنې په اړه تر وسې وسې نوي او گټور څه وړاندې کړي.

په دې لړ کې له دوه میاشتنۍ ((ورځ)) څخه دا هیله ډېره کېږي چې رامخته کړی ارمان لا ښه ترا تر سره کړای شي. خو له بده مرغه، لکه څنگه چې لیدل کېږي، ددغه ښکلي نامه زیاتره تشه جوله(لفظ) په پام کې نیول شوې ، نه مانا. بېلگه یې داچې ځای او نا ځای ((ځ) وکاروي، لکه: ځوی، ځېږېدل، ځېږېدنه، ځېږنده، ځېږون، ځما، ځمونږ، ځانگو، ځانگل، ځمری، ستونځه... او بیا چې په یوه کورنۍ کې د سرورزوي تر څنگه سرورځوی او قتیل ځوی کښل کېږي... . په پای کې به دا په زرگونو ټېرونه، هم د - زي پرځای په - ځي دود ومومي !

زه وایم، ولې یې جاج و مانا په پام کې و نه نیول شي او په دې توگه پکې د وسمهالي څېړندود (مېتادولوجۍ) پر بنسټ د نوې پوهې ، فرهنگ او بیا په ځانگړي ډول د نوې پښتو ژبپوهنې او رښتیني پښتني تاریخ په اړه هغه څه خپاره کړي چې د رحمان بابا خبره ، منکر پرې اعتراض و نه شي کړای !

موږ باید ځوان کمپیوټري پښتني پښت ته نور د وریځو اوښان جوړ نه کړواو د رښتیني مېتودیک افغاني - پښتني تاریخ پر ځای ورته بېځایه ویاړنې او ستاینې په غوږو کې ور پو نه کړو. همدارنگه پردي مذهبونه، ژبې، فرهنگونه او تمدنونه را خپلونه پرمختللې علمي نړۍ په ځان پورې له خندونې

پرته بله څه گټه او پایله نه لري  او بیا لا دا ګیله هم کوي چې ختیځپوهانو یې پر دغو اپلتو ولې ځانونه ناګاره کړي دي ! پر دغو داوو او دنګلو خدای بښلو دودیزو پوهانو پوره ځانونه ستړي کړي او بوجۍ بوجۍ کتابونه یې را پرې ایښي ، نو بیا بیا راغبرګول او لا پړسول یې څه په کار دي! نومهالي پوهنیز  دود و مېتود دادی چې هرڅوک یوه سکالو ترلیکنی څېړنې لاندې نیسي، باید مخکې له مخکې یې مخینه په پوره غور تر ځیرنې او کرونې تېره کړي، کره ترې  راواخلي او کوره کوټه یې ور پرېږدي او خپل نوي زوي پرې ورزیات کاندي.

ما چې پېنځه دېرش کاله مخکې له اروپا څخه د نوې ژبپوهنې له رالېږدولو سره د خپل پوهنځي پېر استادانو لوستلیکي، لکه د علامه حبیبي  پښتو ادب تاریخ، د استاد  رښتین پښتو ګرامر یا د استاد رشاد ادبي فنون، په تېره پښتو عروض و قافیه یومخیز وننګول، د کومې ترېګنۍ له مخې نه وه، بلکې زماله ځانګیزې پازې یې اره اخېسته او د زړه له کومې مې غوښل چې نوي پښتني پښت ته نوي څه وړاندې کړم. له هغو نه یوازې استادحبیبي وو چې د ۱۳۵۴ ل. کال په نړیواله پښتو پوهنغونډه کې یې په ټوله پښتني مېړانه دا منښته وکړه: ((موږ له خپل واک و وس سره تر دې مهاله راورسوله، نور نوی اکادېمیک پښت پوه شه او نوې لاره روده یې! او بیا هم همدا استاد وو چې د ((یوې- کره پښتو لیکلارې)) په اړه یې راسره  لاسلیک کړې چلند لار (پروسېجر) بېرته وانخېست، که څه هم په کړن کې تر ډېره پر هماغه خپله کندهارۍ لیکلار ټینګ و ترینګ پاتې شو.مولانا خادم چې کړی لاسلیک یې په کړن کې پر خپل خورمنځ برابر و نه لید ، د داود خان تر دوتره یې پلپوټ (شکایت) ورسېد!

داچې په  ورځ کې زیات زور پر هماغه زړو دودیزو ما ویلو تا ویلو اچول کېږي او بیا پکې  بشپړ کتابونه راغبرګېږي، ښایي کوم دک و دلیل یې تر شا ټیکاو ولري، خو زه د مرکز او ددغې مهالنۍ د همکار په توګه د ګوتنیوي پرځای دا رغنده وړاندیز کوم چې د هغو ترڅنګه د نوې ژبپوهنې په رڼاکې زما پښتو پښویه او همستاسې له خوا چاپ شوی کتاب ((پښتو او پښتانه)) هم پرله پسې ټوک ټوک خپور کړئ.  له دې سره به  نوی پښت دا کابو ومومي چې  تر دغه منځ یوه پرتله وکړي او یوه پایلنیوي ته پخپله ورسي !

دغه راز له ګران ګړندي صاحب نه هم هیله لرم، د پښتو لیکدود او لیکلارې په برخه کی د پښتو استادی پر ځانګړو ازمېښتو ، زړو پرېکړو او کتابونو بسیا پاتې نه شي او نوې پښتو ژبپوهنه او په تېره لیکلار هم تر کتنې اوڅېړنې لاندې هم ونیسي چې له  درې نیمو لسیزو او بیا د یاد شوې چلند لارې لاسلیک راهیسې یې په څه له پاسه دوه سوو توکو(مادو) سره  لیکنۍ پښتو ته لار موندلې او ښایسته ډېره دود شوې ده. داسې هم نه چې ګوندې زه دا دومره مهال ارام ناست یم، بلکې له نورو

لوستليکيو سره يې په ژبپوهنه کې له نويو نويو برياووسره پرله پسې کروم او بشپړوم او دا دي په همدې نژدې کې به يې له پروسږنې ژمنې سره سمه د «ليکلاربنود په نامه لا کره او کېښکلې جيبي بڼه د چاپ لپاره همتاسې ته در وسپارم.

دا به ځومره ښه وي، ګړندی صاحب يې د دغه نوي لاربنود په رڼا کې له همدې دوه مياشتنۍ را پيل کړي چې ولې پر ځ دومره زور اچول کېږي، هغه هم د ننګرهاريا نو له خوا چې په «ځيګر» کې يې ګرد سره ځ نشته. يا د کابلۍ پښتو «څو، ترڅو، تر څوچې...» او د پېښورۍ پښتو «څوک چې، کوم چې...» مخنيوی چې ان د مرکز په شپږم توک يا ماده کې پېښورۍ ډوله «کومه چې» راغلې ده.
همدارنګه د(د - له) او (په - پر) يو د بل پرځای ليکل، لکه: پرتوګې (په توګه)، پرهکلې (په اړه)، پر ټوليزې توګې (په ټو ليزه توګه)، دوه يم، دوه دېرش، دوه څلوېښت... چې ډېری پښتانه يې بې (ه) ادا کوي او اروانباد وزيرصاحب به د خلکو په خولو کې ور سموله. همداراز د ننګرهارۍ او ټوليزې شمال ختيزې پښتو نور له ارو معياره غورځول شوي - مونږ، زمونږ، ما وخوړو، وخوړلو د« وخوړ» پرځای، يا وليکلو د «وليکه» پرځای او داسې نور درواخله!
دا دی، له همدې ليک سره د اووغزوال او ګړندي صاحب ترمنځ د پوخلاينې په موخه د کره پښتو ليکدود يوه برخه د چاپ لپاره در برښليکوم.

په ټوله پښتني- افغاني مينه او لورېينه
پوهاند دوکتور م. ا. زيا ر

# د يوې - کره پښتو ليکلارې اړوند ليکدود (Orthography)

۱- يوه کره ليکنۍ پښتو ۳۶ غږونه (sounds)، خو ابېڅې (الفبې) له دېرشو نښو (توريو) تېرې نه کوي. له ۷ خپلواکو (واوېلو) څخه يوازې درې دا ليکنۍ نښې يا توري (واى) لري. د زور (فتحې) او زورکي لپاره (ه) يا (ء) او يا چرګۍ (هه) کارونګ د ژبپوهنيز قانون «توپير» تر ډېر ځايه زيانمنوي او له لوستونکي لار لودن ورکوي. يوازې د «ى» د څلورګونو ډولونو له رامنځته کولو سره يو څه ليکدودي سمون راغلى دى چې له ښه مرغه پېښور اکېډيمۍ هم هوکې کړي، که څه هم د اردو په پېښو(ے) او دغه راز(ء) بېخرته کارونې کوزنۍ ليکدود ډېر کړکېچن او کرغېړن کړى دى!

۲- څلورګونې«ى» ګانې له خپلو بېلګو سره:

- اوږده (ې)، لکه:خداى دې ادې له دې ناوړې پېښې لرې لري.
- لنډه (ي)، لکه:ښادي، خپلوي، وداني.
- نرمه (ى)، لکه: نرى سړى، ځاى، خداى، ورى، وړى.
- درنه (ۍ، ئ)، لکه: نړۍ، کړۍ، ډوډۍ، څوکۍ...
- په کړ (فعل) کې، لکه: ډوډۍ وخورئ، ښه کوئ، بد مه کوئ.

۳- د واوېلي (غيرملفوظه) او کنسوننټي(ملفوظه) «ه» توپيرول په کار دي. په دې ډول:
په (دويم) کې د واوېل (فتحې) په توګه غورځي او په (نهم) کې د کنسوننټ (ملفوظه ه) په توګه پاتې کېږي. د (نهم) بنسټ (نه-)دى، مانا دا چې ړومبۍ(ه) کنسوننټ (حرف صحيح) دى او دويمه هغه يو واوېل (حرف علت) دى. (اووه - اووم، پينځه - پينځم، يو- يوم...) هم په همدې لړ کې راځي. نور واوېل پاى يا خپلواکپاى شمېرنومونه (-ي-) غواړي، لکه:
درې- درېيم، اويا- اويايم، اتيايم، نوي- نوي يم يا نوييم؛ «څويم» هم تر ورته دوى يا قاعدې لاندې راځي. کنسوننټ پاى هغه خو په هر ډول اړونده پايله (- م) سيده په ځان پسې نښلوي، لکه:
څلورم، پنځم، شپږم، اتم، لسم... سلم، زرم، ميليونم... . پرکنسوننټي يا معدوله (و) پايته رسېدونکي شمېرې هم په دې لړ کې راځي، لکه:
يوم(يوسل ويوم)، دوه سوم....
زور- پاى او زورکي پاى هم د دغو واوېلو تر غورځونې و روسته تر ورته قانون لاندې راځي.

۴- په (- ونکى) رغېدونکي کړنومونه همدا يو «و» غواړي، لکه:

لیکونکی، ځېرونکی، ژباړونکی، ګنډونکی، خوړونکی، څښونکی، تلونکی، ویونکی، وهونکی... ،
خو که له فعلي مصدره (- ل) لرې شي او پاتې بنسټ یو «و» ولري، نو (ونکی) بیا (وونکی) کېږي، لکه:
کاروونکی، خپروونکی، څرګندوونکی، اړوونکی، ټولوونکی... . له (ښوول) او (پوول) څخه چې (-ل)
لرې کړې، نو (وو) پاتې کېږي او په کارده، اړوندستاینومونه یې (ښووونکی) او (پووونکی) ولیکل
شي، خو د دود وینګ له مخې ترې یو «و» غورځي .

۵- غبرګڅېبیز توري (ټ، ډ، ړ، ڼ) چې غږونه یې له غږبوهیز پلوه پښتو ډېر پخوا له هندي (پراکرېټو) را
پور کړي دي، په اروپايي ژبو کې هېڅ نه ویل کېږي. کوم انګرېزي ټکي چې په لره پښتو کې ویل کېږي
او کارول کېږي، بیا هم هماغه هندي او بیا اردو- انګرېزي اغېز دی، لکه:
ډاکټر، ماسټر، تهئټر، سېنېټر، ډېموکرېټ ،ډېماکراسي، ډېکټېټر، کلېنټین، رامسفېلډ، ټوني بلېر،
اکسفورډ.
که څه هم بره خوا تر پارسي او بیا لاتین آرې پرانسي اغېز لاندې دغه غبرګڅېبیزوالی له وینګ او
لیکنګ دواړو وتلی وو ، لکه: دوکتور، ماستر، تیاتر (ننداري)، سناتور، دېموکرات، دېموکراسي،
دېکتاتور... ، خو زموږ د برنیو له کډوالۍ سره د لرنیو غبرګڅېبیزوالی پر ټوله پښتو واکمن شو او هغه
هم زیاتره د انګرېزي پورویېونو په برخه کې، نه د نورو اروپايي ژبو(جرمني، پرانسي، ایټالیي، اسپا
نیي...) په برخه کې، لکه:
فیدل کاسترو- فیډل کاسټرو، شورایدر- شورایډر، هېلموت- هلموټ، دوګول- ډګل... . مانا داچې
دومره ښنده (زیاده روی) هېڅ په کار نه ده !

۶- جغرافیايي نومونه، لکه: اسیا، افریقا، اروپا، امریکا، استرالیا، انترکتیکا، کاناډا، برتانیا،
ایټالیا، البانیا، انتونیا، استونیا، مکدونیا، کروشیا، کولمبیا، لیبیا، سوریا، چېچنیا، سومالیا
،اېتوپیا، مالیزیا، اندونیزیا،... زموږ د لرغونو آریايي نومونو (آریانا، سوغدیانا، لودیانا، باکتریا،
پښتونخوا...) په بېلګه په الف کره راځي، نه دعربي او اردو په پېښو اسیه، افریقه.... هرګوره، روسیه،
تورکیه، فرانسه، اوتریش - اتریش یا اطریش، پولېنډ - پولند، انګلیستان - انګلېنډ یا انګلند... کې
لومړۍ بڼې غوره او کره دي.

۷- پښتو ویاند ته په کار ده، د هر چا او هر ځای نوم د اړوندې ژبې له وینګ سره سم ولیکي او
ووایي، لکه: پرانسي (مېشل)، روسی او جرمني (میخاییل)، انګرېزي (مایکل)، عربي- اسلامي (مېکا
ئیل- مېکاییل)، یا د جرمني (یوزف)، انګرېزي (جوزف)، اسپانیي (خوسف)، د جرمني پخواني بهرني
وزیر نوم (یوشکا) چې له آره د (یوزف) کوشیننوم (مصغرنوم) دی، هم همداسې درواخله چې زیاتره

پېښوري او کوټه وال ویاندان یې «جوشکا» لیکي او وایي. روسي «څار» یا جرمني  څویریښ... هم بویه د پارسي یا نورو ژبو په پېښو (تزار، زوریخ یا زوریک...) ونه ویل شي او ونه لیکل شي.

۸- پښتو او آریاني یا نا عربي وییونه، ځاینومونه، ټبرنومونه او وګړنومونه باید تر وسې وسې له وینګ سره سم په پښتو تورو او لیکدود و لیکل شي، لکه:
توره باز (طوره باز)، تورخم (طورخم)، تورو (طورو)، توتو (طوطو)، توتي، توتا، توتاخېل (طوطاخېل)، تهران (طهران)، اناتولیا (اناطولیه)، توپان (طوفان)، پرښته (فرشته)، خپه (خفه)، اپلاتون (افلاطون)، الینګار (علینګار)، الیشنګ (علیشنګ)، لال وسرځنګل (لعل و سر جنګل)، اسلام کلا (اسلام قلعه)، کلای نو یا نوې کلا (قَلعهٔ نو)، کندهار (قندهار)، کندوز یا کوندوز (قندز یا قندوز)، ساکزی (اسحاق زی)، الیزی (علیزی)، دوتر (دفتر)، ساپی (صافی)، اپریدی (آفریدی) ، ګدون (جدون)...

۹- یوځای لیکل او جلا لیکل:
د ژبپوهنیز دوی (قاعدې) له مخې ټول ژبني توکي یا یوونونه (واحدونه) سره بېل بېل لیکل، په بله وینا ، د اړوند لیک سېستم له شونتیا سره سم، تر وسې وسې جولیز یووالی له مانیز یووالی سره غاړه غړې کول په کار دي. که هغه ازاد وییکي وي، لکه: سربلونه، وستربلونه او اړیوییکي (په، پر، تر، د ، له، سره، کې، پورې، ته... چې، که، او ، هم...)، که ساده وییونه وی، لکه: نومونه (کور، لوی، زه، ته، دی، دا ، هغه، یو، دوه...)، یاکړونه (تلل،خوړل، ځي، خوري...) او یا ترښتي (ترکیبي) او بېلښتي (اشتقاقي) وییونه وي، لکه: کټمل، پوهنمل، پوهنتون، مرستون، خپلمنځي، خپلچاری، خپلخوښی، ځانساتی، تلپاتې، پښتونولي، پښتونخوا ، ولسمشر یا هېوادمشر، بنسټپال، بېلتونپال، منځلاری، ترهګر، کتابتون، ټولپوښتنه، ټولوژنه، ځانوژنه، بلوژنه، لیکلړ، نوملیک، برخلیک، برخوال، پانګوال، پانګواکي، ځمکوال، ځمکواکي، ځمکسمون، ژبپوهنه، ټولنپوهنه، لرغونپوهنه، وییپوهنه، وییپانګه، وییزبرمه، سونتوکي، لرغونتوکي، مخنیوی ، مخکتنه، کتنپلاوی، لاسلیک، لاسلیکول، لوستلیکی (درسي کتاب)، مخامخول، مخامخېدل، مخبېلګه، وړاندیز، وړاندوینه، وړاندبینه، ترینکوټ، لوبغالی، لوبغاړی، لوبډله.

په دې لړ کې له دوو وروستیو توکیو (نومونو او کړونو) سره د ړومبیو هغو (ازادو توکیو) یوځای لیکل کره نه دي، لکه:
لخوا ، لما ، پکور (کې)، پخپل (هېواد کې)، غزنیته (ځم)...، نخورم، نکوم، نلرم، مخوره، مکوه...

پخوا (قبل، قبلا)، پخپله (شخصا) ځکه سم راځي چې خپلواک وییونه (قیدونه) دي، ځانته - ځان ته او مخکې- (په) مخ کې سره هم په ورته دلیل توپیربږي. «بلخوا» له «یوخوا» سره د اړیکوییکو په توگه همداسې یوځای دود موندلی دی.
یو لړ وییکي سره په خپلو منځو کې یا له خپلواکو توکیو سره ځکه یوځای لیکل کېږي چې د یو یوازېني چار یا مانا لپاره سره په غونډله (جمله) کې تل پرله پرله پېیلې راځي، لکه: پکې (درآن)، همدا، همدغه، همدی، همده، همدې، هماغه، همداسې، هماغسې یا همغسې، همدارنگه، منځته راوړل، منځته راتگ، رامخته کول، لاسته راوړل، لاسته راوړنه، پایته رسول، لپاره، نشته، یا په (سترې مشي، خدای مکړه یا خدای دې نکړي) غوندې گړنو او ځرگند نو کې وییکي (مه، نه) له کړونو سره یوځای لیکل هم همداسې درواخله!

که نه، د ټولیز دوی یا قاعدې له مخې د غه دوه توکه له کړ سره نښلول سم نه دي اوباید جلا ولیکل شي، لکه:
نه خورم، نه خورو، نه کوم، نه کوو، نه لرم، نه لرم، نه شم کولای، یا کولای نه شم، ونه شم کولای، را به نه شم، وابه نه وړم... . دلته کېدای شي، د لیک اسانتیا لپاره یوه نیمه بېدویې یا استثناء ومنو، لکه پاس په یاد شویو، او یا په (وانخلم، رانغلم، رانغی) غوندې دودو بېلگو کې.
له اوسنیو کمپیوټري اسانتیاوو او بیا د «یوې- کره پښتولیکلارې» دننه د کره ټولمنلې پښتو ابېڅې پر بنسټ رامنځته شویو کیبورډو سره په کارده، په یو یو وت (space) سره د هرې کربښې یا غونډلې دننه په یو یو وت (space) سره د بېلابېلو لویو او کوشنیو توکو تر منځ لیکنی بېلوالی او خپلواکي ښه ترا سمباله کړو.

۱۰- په پښتو کې د نورو ژبو پوروییونه له ژبپوهنیز او نړیوال دود و دوی پر بنسټ تر کېدونه له پښتو وینگ او لږوډېر مانیز اړونگ سره راخپلول په کار دي، لکه: گاډی (گاړی)، ماشوم (معصوم)، شمه (شمع)، تمه (طمع)، کیسه (قصه)، پوځ (فوج)، سبا (صباح)، میرات (میراث) د تباه او برباد په مانا، کرار (قرار)، سهار (سحر)... . پیل، توپان، اپت، تم، تپوس، پرښته، پراخ، خپه، خپگان، کمیس یا کمیز، مانا، دین، شېر (شعر) او یو لړ نور داسې وییونه د ډېرو آرپوهانو (اېټېمولوجېستانو) د څېړنو له مخې نا عربي یا عربي شوي (معرب) گڼل شوي او یا هم ټکرویي (تصادفي لغات) زباد شوي دي.

۱۱- «ځ» د پښتو په څلورگونو گړدودي ډلوکې د (ښ، څ، ږ، ژ) تر څنگه له شمال ختیزې هغې څخه تری تم شوې او له همدې کبله یې اړوند لیکوال په لیکدود کې زیاتره ټکني کېږي:

هغلته چې باید ځ ولیکل شي، ز لیکي او چېرې چې ز ته اړتیا وي، هلته ځ کارېږي، د ځ پر ځای ز، لکه په: غزېدل، خوزېدل، وزي، زلېدل، زیرک...کې؛ د ز پرځای ځ، لکه په: ځوی، ځوی ځات یا ځوځات، ځېږېدل، ځانګو، ځانګل یا ځنګل، ځنګول، ځنګېدل، یواځې، ځما، ځمور، ځګېروی (زېږګی هم ناکره دی)، سلېمانځی، قتیل ځوی... . که څه هم په یو لړ منځنیو ګړدودو، لکه د خروټو ،اندړو او وردګو په هغوکې یې څه ناڅه وینګ هم شته، خو د لړه کیوالي له کبله له آرومعیاره غورځي.

د اروانباد استاد الفت دا خبره ، که څه هم پر ژبپوهنه برابره نه ده چې:« ځ څوک په خوله نه وایي، نو لیکل یې څه په کار دي!»، خو دومره بېځایه لیکل یې هم په کار نه دي ، لکه څومره چې د ساپي پښتو مرکز «خوږیاڼې ورونو او وربرونو» او قلمي همکارانو تازه رادود کړې ده ! د دې لپاره د «یوې- کره پښتو لیکلارې» پر بنسټ د «ځ» کارونځایونه په لاندې ډول لنډېزمومې:

- د تلل، وتل، راوتل، ننوتل، پربوتل، پورېوتل، کښېوتل، پرتل، پرانېستل یا پرانېتل... «ت» په وسمهال کې پر ځ اوړي، لکه په:
ځم، وځم، راوځم، ننوځم، پرېوځم، پورېوځم، کښېوځم، پرځم، پرانېځم ... کې.
هرګوره ټول (- ت -) والا کړونه دا مهالي بدلون نه مومي، لکه: نتل، کتل . ختل پر خېژي، کوتل پر کوژي، نغوتل پر نغوژي... اوړي. دغه راز د «ځ» لړونکي ګړدود والا کندهاري لیکوال هم په پاسنیو کړونو کې یونیم په «ز» کارېږي، لکه: وزي، پرانیزي!
- له خپلوانو ژبو سره د همرېښه وییونو د «ج» پر وړاندې پښتو «ځ» راځي، لکه په:
- ځمکه (هندي جماکه، پارسي زمین)، ځنګل (هندي، پارسي او انګلیسي جنګل)، ګاځره (هندي ګاجر)، ځای (جا ، جای)، ځوان، ځلمی، ځک (جک)، ځښت (زشت)، ځنبل (جنباندن)، ځولۍ (جولی)، ځور (جور)، ځلېدل، ځل، ځلا (جلا)، ځلوبۍ (جلبي)، ځوږ (جوش)، ځیګر، ځنکدن، زنځیر یا ځنځیر...
. دا هم هېرول په کار نه دي چې هره پښتو ځ د پارسي له ج سره یومخیزه اېتېمولوجیکي مخامختیا نه لري، بلکې لږوډېر له نورو فونیمونو سره هم اړوندولتیا مومي، لکه په: نمونځ یا لمونځ - نماز، ځیرک- زیرک، ځمکه- زمین، روځ یا ورځ- روز... کې.د «د» پروړاندې، لکه په ګردیدن- ګرځېدل کې. ځواب له عربي جواب څخه کېدای شي، پښتو له پارسي لارې راخپل کړی اوسي.
- د تونروستاړي (مکاني لاحقې)، په بله وینا ، د - ځای، - ځی او یا - ځ په توګه، لکه په:
رغځی، دمه ځی، مېله ځای، پخلنځی، دریځ، ختیځ، لویدیځ، اوریځ، مینځ یا منځ، اخځ، ترخځ، چورلیځ (محور)، ګهیځ (د مهالروستاړي په توګه)؛ ربېځ یا ربځ (جاروب، برس) هم د دغې لړۍ اړوند برېښي.
- په ګړدودي ځېلونو (وارینټونو) د «ز» او «ج» پر وړاندې «ځ» کره راځي، لکه په:

جاله- ځاله، زلمی- ځلمی، ګونجې- ګونځې یا غونځې، نا نزړه - نانځړه، جار- ځار، جرنده - ځرنده یا ژرنده، جندره- ځندره یا ژندره، زمکه - ځمکه (نه مزکه او مځکه)...کې. ختیز او لویدیز له آره د ځتیځ او لویدیځ د ستاینومونو (ختیځیزاو لویدیځیز) لنډیزونه دي او په کار ده، لیکوال د دغه لیکدودي توپیر خیا ل وساتي !

۱۲- په ډېرو خپلو او پردیو ویییونو کې تر چ ،څ د کره لیکلارې او لیکدود ښکارندویي کوي، لکه په: څښل (چښل) څښاک، څټک، څګ (ګوړه)، څوکۍ، څپلۍ، څله (د ژمي یا واده)، څمڅه، څمڅۍ، څمڅوکۍ (کاشوغه)، خرڅ (خرچ، خرچه)، څڅۍ (ناوه)، څرمه (چرمه)، څرم، څرمن، څرمي، څرمني، (پس) کوڅه، نڅوړ، نڅوړل، سمڅ یا څمڅ، څرمښکۍ، څمڅاره، څنۍ(نه سنۍ)، څوباړی (نه سوباړی)، څېره (نه چېره یا چهره اوڅهره)، څیرل، څیرې، څیرله (ریتاړه، پرزه)، اڅکزی

۱۳- « چې» د (چه، چي، څې) او «کې» د(کښې، کښې، کښي، کي) پرځای کره منل شوې دي.

۱۴- ځینې د (بعضې) او څنې د (څخه، ورڅخه، ترې) په مانا توپیرول په کار دي.

۱۵- یو لړ وییونه او نومونې چې لرو پښتو لیکوالو زیاتره له انګرېزۍ او څه ناڅه (د اردو له لارې) له پارسي او عربي، او برو له بېلابېلو ژبو په بېلابېلو بڼو راخپل کړي او راخپلوي، یوازېنۍ هوارۍ به یې دا وي چې پښتو نوې رغاونې (نیولوجېزمونه) یې ځای ونیسي، لکه:
بیالوجي، بیولوجی، بیولوژي، بیولوګي (ژوند پوهنه)، لنګویستیکز، فلالوجي، لسانیات (ژبپوهنه)، سوسیالوجي، سوسیولوجي، سوسیولوژي، سوسیولوګي، اجتماعیات (ټولنپوهنه)، سوسیاټي، سوسیټي، جامعه، معاشره (ټولنه)، ډیماکراسي، ډېموکراسي، د موکراسي، جمهوریت (ولسواکي)، کلچر، کلتور، کولتور (فرهنګ، هڅوب)، موومنټ، تحریک، حرکت، جنبش( غورځنګ)، نشلېزم، نېشلېزم، ناسیونالېزم (ولسواله).

۱۶- « ګ » چې له بده مرغه کوزه خوا دود لري او زموږ کمپیوټر پوه نورحمان لېوال هم د یوې بې سروبوله انګېرنې له مخې د خپل «ایشیا سافټ» پر پښتو ابېڅې را تپلی دی، نه یوازې له تخنیکي- اقتصادي، بلکې له ژبپوهنیز پلوه یو خورا ناسم کار دی. ځکه «کړۍ» یا د پېښوریو په نومونه «کونډه» د غبرګژبیزوالي ښکارندویه ده او زموږ پخوانیو، اګاهانه یا نا ګاهانه د څلورګونو پښتوغبرګژبیزو غږونو(ټ، ډ ، ړ، ڼ) لپاره رامنځته کړې ده چې له وینګ سره یې رښتیاهم ژبه په خوله کې راکړۍ کېږي. دا ښه شوه چې تر څنګه یې د اجمل حمزه، اېمل پسرلي او نورو نوښتګرو د ښاغلي

لېوال ټيکه والي نوره ننګولې او د پارسي او اردو په ګډون يې هماغه پخوانی«برنی» هغه « ک » پښتو پروګرام ته رانه ابستی دی او ورځ پر ورځ دودېدنه مومي. ابمل، هرګوره، بیاهم د کوزنیو په پښتو د زورکي (همزه) ټينګ ساتلی دی!

۱۷- د کابل پښتو ټولنې د ناسمو لیکدودي پرېکړو یوه بېلګه دا وه چې د پارسي (بود- بودند، بوديم) پښتو انډولونه (و- وو- وو) وکښل شي او په دې توګه يې ما هم د ډېریو برنیو لیکوالو په لاروی، د دودوالي او یووالي پر بنسټ په خپلو لوستلیکیو او بیا کره پښتو لیکلار او لیکدود کې دا درې لسیزې همداسې خیال ساتلی وو. خو په دې وروستیو کې چې دغه کتابونه مې د بیا چاپ لپاره تر نوې کتنې ، کرونې او بشپړونې لاندې ونیول، د نوې پښتو غږپوهنې له آر و معیار سره سم مې د یوګړي درېیم وګړي، یا په دودیزه - ملايي نومونه (مفرد غا ئب) « وو»، ډېرګړی يې «ول»، یا د(- ل) په غورځونه « وه » او ډېرګړی لومړی وګړی (جمع متکلم) پرهماغه زړه بڼه «وو»، یا د(ول) په آره ګرداني بڼه «ولو» کړ.

«ول» د پارسي«بودن» د انډول په توګه یو ژوندی کړ(فعل) دی او د نورو کړونو په څېر يې ګردانول په کار دي، لکه له تلل څخه:

تلو (لنډيز: ته)، تلل یا تله او تلو... . ړومبی اوږد - و( o) او دویم (لنډ- و u) وګړيزې پایلې ( personal endings) بلل کېږي چې په ملايي ژبپوهنه کې ورته هسې بېځایه «متصل ضمیرونه» وايي. د (بود) انډول هم په دې(وو) کره راځي چې ړومبی(و) د کړبنسټ په توګه یو کنسوننټ یا معدوله و(w ) دی او دویم د یوګړي د پایلې په توګه یو واوېل (اوږد و o ) دی او بې له دې ړومبی کنسوننټي هغه هېڅ ویل کېدای نه شي. د(بوديم) انډول(وو) ورسره په وینګ او غږیزلیک توپیرېدای شي، ړومبی (و) د کړ بنسټ په توګه کنسوننټ (w) دی او دویم د ډېرګړي لومړي وګړي پایله یو واوېل (لنډ وu) دی.

په هره توګه، زموږ په نیمګړي عربي آري لیک سېستم کې له دې نوي لیکدودي سمون سره سره بیا هم لوستونکی اړ وځي، د وړاندې وروسته توکیو له مخې يې سم ولوستلای شي.

۱۸- شو (شد) او شول (شدند) په لړ کې چې د ویونکیو د ډېري د آر پر بنسټ د (سو) او (سول) پر وړاندې کره ارزول شوی دی، شوو د (شديم) یا(شدند) د انډول په توګه له دوو (وو) سره کښل، بېځایه دي، ځکه ، لکه چې پاس وویل شول، هماغه ړومبنی لنډ- و وګړیزه پایله رغوي، دویم ته هېڅ اړتیا نشته. که په دې موخه پښتو ټولنې یا بل چا رادود کړی چې له یوګړي اوږد - و سره يې توپیر وشي، هم کوم آر نه شي ګڼل کېدای، که نه، په کار ده چې هرچېرې د لنډ - و لپاره غبرګ (وو) ولیکل شي،لکه په (یو، ځو، رېبو...) یا په نومونو (ټټو، لاټو، ډېپو، لاهو...) کې.

۱۹- د لرې پښتونخوا ليکوال او ويناوال بايد د(ږ- ګ)،(ښ- خ)،(څ- س)، (ژ- ج) او (ځ- ز) توپير سره وکړي: نه سترګې (سترږې) وليکي، نه کېږي (کېګي) او داسې نور، که څه هم په ګړدودو کې يې د څلور واړو (ږ، ښ، ځ، څ) وينګ له منځه تللی او له ليکوالو او ويناوويانو يې هم د ادايني تمه نه شي کېدای، خو د ((يوې-کره پښتو)) په پار يې بايد تاريخي آروالی په ليک کې خوندي وساتي.

۲۰- که پردي او په تېره، عربي ويپونه څوک له کره پښتو«شوي» وينګ او ليکدود سره سم ليکل غواړي، ورته اړينه ده چې يو مخيز يې را پښتو کړي، لکه: فوج د فوځ او فوز پرځای (پوځ)، فرشته د فرښته پرځای (پرښته)، قصه د قيصه پرځای (کيسه)، شمع د شمعه پرځای (شمه)... . همدارنګه که (صا حب) اله ماله کارول کېږي، نو د (صيب) منځغږوپ وينګ او ليکدود څه په کار! څه مهال له مخه يوه ویاند (صحاب منصب) کښلی وو او ښا يي همداسې يې اورولی هم وي، نو ولې يې اسان او ساده انډول «افسر» و نه کارول شي چې د (تاج) په مانا هم آريا ني بنسټ لري او هم له انګرېزي (آفېسر) سره اړخ لګوي. بره خوا کلونه کلونه مخکې له سرتېري (عسکر) اوکارمن (مامور) سره يوځای رادود کړ شوی وو، خو اوس ورسره د بي بي سي پارسي ځېلو پښتو ويناوانو په پېښو دا نور دوه ويپونه هم بيرته عربي انډولو ته اړول شوي دي.

۲۱- تر ټولو وروسته پر کښېنيو ويناوانو بيا هم ټينګارپه کار دی چې د اردو مسخه او مېکسډ ژبې او ليکدود په پېښو پښتو ژبه او ليک په بېخرته (زورونو، زېرونو او همزه ګانو) انجړبنجړ نه کاندي، بلکې پر ليکه (افقي) اوډون ډېر زور واچوي، په بله وينا، واوېلي توري همداسې ساده او بې خدوخاله (و،ا، ی، ې، ي، ی) وکاږي.د (زېر) پرځای (ې) او د (پېښ) پرځای (و) وکاروي، که څه هم ځای ډېر ونيسي او کرښې زياتې وغځېږي . بره خوا، ان د پښتوټولنې په دېرشمو لمريزو کلونو کې پر دغه آر ټينګار شوی وو، لکه په دې بېلګو کې:
ګومان، ګومارل، خوله، کوچنی (کوشنی)، غوټۍ، غونچه، موسکا، موسکی، پوخلا، پوخلاينه، خورما، توند، توکم، توخم، اوتمانخېل، کونړ، اورزګان يا ورزګان (ارزګان)، کوندوز يا کوندز، کولپ...، ګيله، څېرمه، ګيلاس، اورګان، رومان، کولتور، دوکتور، کلينيک، ټېکېټ، ژورنالېست، ژورنالېزم... . (پوره څرګنداوی<پښتو ليکلارښود).

# دويم څپرکی

## ټکي پر ټکي يې مه راژباړئ!

هره ژبه د يوې ټولنيزې ښکار ندې (پديدې) په توګه له خپلې اړوندې ټولنې سره سمه راپيدا کېږي، ورسره پر مختيا مومي او ورسره له منځه ځي. کومې اغيزې چې له نورو ټولنو څخه يوې ټولنې ته لار پيدا کوي، هرومرو پکې ژبنۍ هغه هم راځي . ځکه ژبه يا ژبې د هر راز ټولنيزو اړيکو د ټينګولو تر هر څه غوره وسيله ده او د هغو په سر کې ځای نيسي . پښتو ژبې هم تل د خپلې اړوندې پښتنې ټولنې په ټول بشپړتيايي بهير کې په زړه پورې برخه اخېستې او په دې ترڅ کې يې د نورو ګاو نډيو ټولنو د ژبو اغيزې پر ځان منلې او خپل اغيزې يې هم پرخپل وار پر هغو ښندلې دي . په دې کې خو څه اړنګ (شك) نشته ، څنګه چې د ټولنو ترمنځ اړيکي او اغيزې د اړوندو ټولنو د پرمختيا او بشپړ تيا بهير چټکوي ، هماغسې يې د اړوندو ژبو تر منځ اړيکي او اغېزې تر هغې پورې دغه راز ګټې لري چې د اړوندو ټولنو او ژبو اکرووکر (هويت او ماهيت) له خطر سره مخامخ نه شي. که نه ډېرې ستونزې او ربړې رامنځ ته کوي . تر اوسه لا په بشري نړۍ کې داسې ټولنه نشته چې په خپله خوښه په يو مخيز او بنسټيز ډول د بلې ټولنې بڼه ځانته غوره کړي او خپله هيره کړې، هسې خو نوې علمي نړۍ جوته کړې ده چې بشري نړۍ د يو کيدنې خواته ځي او يو وخت به د پرمختيا او بشپړ تيا يوه داسې پړاو ته ورسېږي چې هلته به هر راز ټولنو ټيز، سياسي، فرهنګي او ژبنۍ بريدونه ړنګ وي، خو تر هغې پورې اړينه بربښي چې په دې لړ کې هره ټولنه خپله ژبه و پالي او تر وسې وسې يې د نورو د اغېزو پر وړاندې خپل آروالی او لږ تر لږه ليکنی يووالی خوندي وساتي .

پښتو ژبه په له منځنې پېر راهيسې زياتره له هندي فرهنګ او ژبو څخه آغېز منه شوې چې غبرګژبيز والی (ټ ـ ډ ـ ړ ـ ڼ) يې غوره بيلګه ګڼل کېږي او تر هغه راوروسته يې له خپلو نژدې خپلوانو او ګاونډيو ژبو (لکه پارسي او ـ تورك و مغولي) او بيا له عربي او اروپايي ژبو څخه ډېر لغوي او ګرامري او اصطلاحي رنګونه اخېستي دي چې په ورځينو خبرو اترو، ليکنواو خبرونو کې يې ډېرې بيلګې جوتولای شو. په دې لړکې ځينو د پښتو ژبې له بڼې سره داسې اړخ لګولی دی چې رغاونې ته يې دومره زيان نه دی رسولی، مګر ځينې ورسره داسې نا انډوله او نااندې بربښي چې ورسره هډو هېڅ د منښت او راخپلونې (اډا پټېشن) وړتيا نه لري. لکه: له ... څخه کتنه کول، له ځانه مېړانه ... ښوول ، تصميم نيول، تماس نيول ، اخطار ورکول، پاتې کېدل يا کښېناستل (اوسېدل)، په عمل کې پلی کول، صورت

موندل ، کوم چې، چا چې ... ترڅو چې او داسې نور. له همدې کبله لیکونکي تل زیار اېستلی چې د دغه راز زیانمنو پېښو د مخنیوي لپاره لار ښونې وکړي او داسې انډولو نه ورته پیدا کړي چې د پښتو له لوښې او رغاونې سره اړخ ولګولای شي، هغه هم د بیلابیلو ګړدودو (لهجو) او زړو متنو په مرسته. د ساري په ډول د(تصمیم نیول) پرځای (پتېیل)، د تماس نیول پرځای اړیکه ټینګول، د (اخطار یا خبرداری ورکول) پرځای (ګواښل، ګواښنه کول) او داسی نور.

په پښتو کې دغه راز ټکي پر ټکي ژباړنې تر بلې هرې ژبې له مخه له دوو نژدې ګاونډو ژبو اردو او پارسي، یا په درغلي نامه «دري» څخه راروانې دي. نه یوازې د ژباړونکو، بلکې د لیکونکیو او ان غږېدونکو او ویاندانو له خوا. د اهم جوته ده چې زموږ پښتو ژباړونکي او پښتو لیکونکي زیاتره، نه پر خپله کره ژبه دومره لاسبری لري او نه پر اړوندو همغاړو ژبواو زیاتره د ژبنیو تو کونو یوه مانا په پام کې نیسي، نه څو ماناوې، لکه زدن پروهل، شاندن پر کښېنول، بردن پر وړل او داسې نور راژباړي.

دلته په دغه لړ کې غواړم، ګران ژباړونکي او یا لیکونکي هغو باریکیو ته ځیر کړم چې د لیکنې او ژباړنې پر وخت یې په پام کې ولري. د دې کار لپاره مې تر هر څه ړومبی دا غوره وګڼله، د پښتو - پارسۍ او په ترڅ ترڅ کې پښتو - اردو ترمنځ د ځینو ورځنیو ډېر پېښنو وییونو (لغاتو) او ګړنو (محاورو) بیلګې وړاندې کړم او بیا په ځانګړي ډول د پښتو - پارسۍ هغه له یو لړ زیاتو بیلګو سره د درنو مینه والو مخې ته کښېږدم. او دا وروښیم چې کومې یې سره یو له بله انډول کېدای شي او کومې نه.

دا دی ، په وروسته ډول د راز راز پارسي وییونو او نومونو پر وړاندې لومړی ناسم او بیا سم وکره پښتوانډولونه وړاندې کېږي :

۱- (- دار) والا پارسي جوړښتونه چې په پښتو کې زیاتره پر «لرونکی» اړول کېږي، خو د تېرو آرونو له مخې دومره کره نه برېښي :

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| زمیندار | ځمکه لرونکی | ځمکوال |
| سرمایدار، پولدار | پانګه لرونکی | پانګوال |
| سردار | سردار | سروال، سردار |
| پاسدار | ساتونکی | پاسوال |
| شهردار(شهرداری) | د بلدیې رئیس | ښاروال (ښاروالي) |

| | | |
|---|---|---|
| چوکیدار (پهره دار) | پیره دار | څوکیوال |
| مشعل دار | مشال لرونکی | ډیوه وال، بلینډه وال |
| گرویدار | گروي لرونکی | گاڼه وال |
| باغدار | بڼ لرونکی | بڼوال |
| مرغدار | چرگان ساتونکی | چرگان روزی |
| وطندار | وطنوال | هیوادوال |
| دامدار(مالدار) | مالدار | څاروي ساتی، پوونده |
| علاقه دار | علاقه دار | سیمه وال |
| آبدار | اوبه لرونکی | اوبلن، اوبه والا، خوندور |
| وظیفه دار | وظیفه لرونکی | پازوال |
| عکس دار (مصور) | تصویري | انځوریز |
| بالدار | وزر لرونکی | ځانګور |
| برخوردار | برخه لرونکی | برخمن |
| فرماندار | د پولیسو قوماندان | پولیس بولندوی |
| پشت کار دار | کوششی | هڅاند، زیارکښ |
| صلاحیت دار | صلاحیت لرونکی | واکمن، واکوال |
| رشته دار | رشته دار (پښتونخوا = خپلوان) | ځانگوال |
| سرشته دار | لوژستیکي افسر | کارساز، پرپنی |
| شاخدار | ښکر لرونکی | ښکرور |
| طرفدار (جانبدار) | طرفدار | پلوي |
| ساقدار | کری بلند | اوږد پوندي (بوټ) |
| ریشدار | ږیره لرونکی | ږیرور |
| نمره دار | نمرې والا | شمېره ییز |
| باردار | بارلرونکی | باري |
| زمامدار | واکدار | واکمن، چارواك |
| جهاندار | د جهان څښتن | نړیواك |
| بهره دار ـ برخوردار | گټه اخېستونکی | گټه من، برخمن |
| پنجه دار | پنجاوو | منگولور، ښنور |
| گوشتدار | غوښه لرونکی | غوښن، غوښور |
| استخواندار | هډوکی لرونکی | هډن، هډور |
| نشاندار | نښاندار | نښه (شوی) نښاني |

| | | |
|---|---|---|
| پهلودار | اړخ لرونکی | اړخن، اړخيز |
| بردار | عریض | پسورور |
| منصبدار/صاحب منصب | منصبدار | افسر، پوځي |
| مهماندار | مېلمه لرونکی | مېلمه پال |
| لعاب دار | لعاب لرونکی | زومنمن، لېړن |
| مردم دار | مردم دوست | وګړپال، ولسپال |
| لبه دار | حاشیه لرونکی | څنډن، څنډيز |
| خانه دار | کورلرونکی | کوروالا، کډوال،کډن |
| حامله دار | حامله داره | بلاربه، دوه ځانې |
| زن دار | متاهل | واده والا، کوروالا، ښځی والا |
| میوه دار | میوه لرونکی | مېوه يي، خولخوندی |
| موتردار | موټر لرونکی | موټر والا، ګاډي والا |
| تفنګدار | ټوپك لرونکی | ټوپك والا، ټوپکوال |
| عزادار (سوګوار) | ماتم کوونکی | ويرمن، ويرجن،وير ژلی |
| پیسه دار | پیسه لرونکی | پیسه والا، شتمن |
| نمدار | نم لرونکی | نمجن، وسجن |
| مالدار | مالدار | پوونده، څارویوال، څارويروزی |
| پشم دار | وړۍ لرونکی | وړين، وړن |
| مو دار | وېښته لرونکی | ببر (وېښتی) |
| روزه دار | روژه لرونکی | روژه تی |
| شب زنده دار | شوګیر کوونکی | شپه ويښی (رونی) |
| ګلدار | ګلدار | ګلالی |
| کینه دار(کینه توز، کینه جو، کینه خواه) | کینه کښ | ګرجن، رخن، کینه ناك |
| خالدار (نقطه دار) | خالدار | ټکيالی، ټکن، ټکی ټکی |
| مزه دار | مزې دار (پ) | خوندور |
| روغندار | روغن دار (پ) | غوړ (بوټي، خوراك) |
| پرچمدار(علمدار) | بیرغ والا | سرغندوی، مخکښ |
| دیندار | دیندار | دين دوست |
| امانت دار | امانت دار | امانت ګر |

| | | |
|---|---|---|
| پایدار | دوامدار | پاینده، پایښتي، ټینګ |
| نادار | نادار | نېستمن، نشتمن |
| گره دار | غوټه لرونکی | غوټن، غوټیالی |
| زاویه دار | ګوټ لرونکی | ګوټن |
| جریحه دار | ټپي | زخمي زړی،ژوبل |
| شکمدار | خېټه لرونکی | بلاربه، دوه ځانې |
| حواله دار | اولدار | کوټوال |
| کیسه دار | کیسه والا | بټوه والا، تیور یا غولانځور (ژوی) |
| تحویلدار | تحویلدار | زېرمه وال |
| خزانه دار | خزانه دار | خزانه چي |
| قرضدار | قرضدار | پوروړی |
| وادار(کردن) | مجبورول | اړېستل |
| نامدار | نوم لرونکی | نومور، نومړ، نومیالی، نامتو |
| واگیردار (فراگیر) | ساري | پمند، پمګر (رنځ) |
| مریضدار | ناروغ لرونکی | ناروغ والا، ناروغوال |
| اجاره دار | اجاره لرونکی | اجاره والا |
| هوشدار | اخطار | ګواښ، ګواښنه |
| شاندار، شکوهمند، پرشکوه | شاندار | پرتمین، برمیال |
| لحاظدار | لحاظ لرونکی | مخ ماتی |
| کوهاندار | کوهان لرونکی | کوهانی، کوپانی، ډاګیز |
| نگهدار | ساتونکی | ساتونکی، ساتندوی |
| معلومدار | معلومدار | څرګند، ښکاره، جوت، اوڅار، ډاګیز |
| مخزن دار | ټانکر | زېرمه ګاډی |
| دارومدار | دارمدار | ناسته ولاړه، ناسته پاسته، چال چلند |
| زهردار | زهر لرونکی | زهرجن، زهر ژلی |
| کاردار | مامور | کارمن |
| رازدار | راز لرونکی | خوالو، خوالګر |

| | | |
|---|---|---|
| دلدار | زړه لرونکی ـ زړه ساتونکی | مین، مینه وړی، زړه ساتی |
| رویدار | رویدار | مخور |
| لکه دار | لکه لرونکی | رټن، رټه |
| دمدار | لکۍ لرونکی | لکیور |
| دمدار | سا لرونکی | ژوندی، ساکښ |
| دوامدار | دوامدار | پرله پسې، پایند |
| خود دار(خودداری) | ځانساتونکی | ځان پامی، ځانڅاری (ځانڅارنه) |
| خویشتن دار (خویشتن داری) | - | ځان پامی، ځانڅاری (ځانڅارنه) |
| خط دار | خط والا | کرښې کرښې، کرښن |
| دوستدار(هوادار) | طرفدار | مینه وال، لېوال، دوست |
| عهده دار | ذمه وار | ژمن، پازوال |
| بیدار | بیدار | ویښ ، ویښیار |
| دامنه دار | دامنه دار | لمنیز، ارت وبیرت، پاینده |
| کتابدار | کتاب لرونکی | کتاب والا، لیکیوال |
| واره دار | واره لرونکی | واره یي، واره ییز |
| خاردار | اغزي لرونکی | اغزن، اغزین |
| معامله دار | معامله لرونکی | پالونکی، انډیوال |
| سرایدار | د سرای خاوند | سرایوان، سرای والا |
| دکاندار | دوکاندار | هټیوال |
| مغازه دار | د مغازې لرونکی یا څښتن | مغازه والا |
| برده دار | مریی لرونکی | مریي وال، بادار |
| پرده دار | پرده لرونکی | پرده پوښ |
| صلاحیت دار | صلاحیت لرونکی | واکمن، واکوال |
| سابقه دار | سابقه لرونکی | مخینه وال |
| هوادار(هواگیر، هواخواه) | هوادار، هواگیر | تاندهوا، مینه وال |

۲- په - گر - روستاړي پارسي جوړښتونه:

-گر که څه هم د جولې له مخې د پارسۍ او پښتو تر منځ ګډون لري او یو فاعلي (چارنومیز) روستاړی دی، مګر دېته هم پاملرنه په کار ده چې پښتو لږ و ډیر د پارسي - ګر، په تېره د ایراني پارسۍ د نوو هغو پر وړاندې نور خپل ځانګړي روستاړي هم لري، لکه د کمایي ګر په وړاندی ګټیالی، د شیشه ګر پر وړاندی ښیښه ساز، د غمګر پر وړاندی غمجن او غمګین، د بازیګر پر وړاندې لوبغاړی، د تماشاګر پر وړاندې ننداره چي، د نمایانګر - نمایشګر، بیانګر او نشانګر پر وړاندې ښکارندوی او څرګندوی، د یاری ګر پر وړاندې مرستیال، مرستندوی یا مرستی او یاد آهنګر پر وړاندې پښ او داسې نور. بزرګر د کشاورز زاو دهقان په مانا په بزګر پښتو کول دومره سم نه راځي، ددې لپاره نړه پښتو انډولونه ډیر دي، لکه: کرګر، کروندګر، کښتګر، کرندوی، کروی، کښندی، کښی او داسې نور. دادی، د پوره خبرتیا لپاره دا وروسته لیکلړ و ګورئ:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| دروګر | رېبونکی | لوګر، لوګری |
| کوزه ګر | کلال | کمباړ، کولال |
| کارګر | کاریګر | کارګر |
| سرکار ګر | د کارګرومشر | سرکارګر |
| بازیګر (ممثل) | نڅېدونکی | لوبغاړی، نڅاګر |
| نمایانګر | ښکاره کوونکی | ښکارندوی، څرګندوی |
| نمایشګر | ښکاره کوونکی | ښکارندوی، څرګندوی |
| بیانګر | ښکاره کوونکی | ښکارندوی، څرګندوی |
| نشانګر | ښکاره کوونکی | ښکارندوی، څرګندوی |
| تماشاګر | تماشاچي | نندارچي |
| ایجادګر | ایجادوونکی | زیږندوی، پنځګر |
| عصیانګر | یاغي | سرغاړی، سرکښ، اورګډی |
| ګزارشګر | رپوټ چي | خبریال |
| آرایشګر | سینګارونکی | ښکلونکی، ډمګی، نایڼه |
| نظامیګر | نظامي ګر | پوځیوال |
| پرخاشګر | پرخاش کوونکی | جګړه مار، لانجه مار |
| آهنګر | اهنګر | پښ |
| زرګر | - | زرپښ، زرګر |
| مسګر | مسګر | ټټار، سره ولېښکار |

| | | |
|---|---|---|
| درمانگر | معالج | درمانگر، درملگر |
| نوحه گر (مریه گر) | فریاد کوونکی | ژړاند، ساندو |
| غار تگر/ تاراج گر | لوټوونکی | لوټمار، تالانگر |
| چپاولگر | چپاولگر | تاړاکگر |
| یورشگر | حمله کوونکی | یرغلگر |
| تجاوز گر | تېری کوونکی | تېرو، بلوسگر |
| پیکارگر | جګړه مار | جنګیالی، جنګیال |
| آشوبگر | _ | اورپکی، اورګډی، سرکښ |
| طلسم گر | _ | ټوټگر (درملگر) |
| استعمارگر | استعمارچي | کوډگر، ښکیلاکگر |
| استثمارگر | استثمارچي | زبېښاکگر |
| صورتگر | صورتگر | انځورگر، پژگر |
| نگارگر (رسام، نقاش) | رسام | انځورگر |
| توطیه گر | توطیه کوونکی | ورانکاری، پتنه گر |
| فتنه گر | فتنه اچوونکی | پتنه گر، پتنه |
| روشنگر | روشنگر | روښاندوی |
| ستیز گر (ستیزه جو) | جنگره | جګړه مار |
| معامله گر | معامله کوونکی | ورځچاری، چنه گر |
| افسونگر | افسونگر | دمگری، پاړوگر، جادوگر، کوډگر |
| رامشگر (نوازنده، سازنده) | سازغږوونکی | سازي |
| پرورشگر | پالونکی | پالنگر، پالندوی، پالوال |
| نیایشگر | عبادت کوونکی | نمانځونکی، پرښتونکی، پرښتگر |
| پژوهشگر | څېړونکی | څېړاند، څېړونکی، څېړندوی |
| کاوشگر | سروې کوونکی | پلټنگر، پلټند |
| ویرایشگر، ایډېټر | سموونکی | سمونگر |
| پالایش گر | تصفیه کوونکی | پاك كار، چاڼگر |
| اغواگر | اغواکوونکی | دوکمار، دروهجن، مارغیتل، درغلگر |

| | | |
|---|---|---|
| بخشایشگر | بخښونکی | بښونکی، بښاند |
| نوازشگر | نازوونکی | پالند |
| ستایشگر(مداح) | ستایونکی | ستایوال |
| رفوگر | رفوکوونکی | پېزونکی، پېزگر |
| جادوگر | جادوگر | کوډگر،جادوگر |
| تصویرگر | ممثل | انځورگر، انځوراند ، ځرگندوی |
| اخلال گر | اخلال کوونکی | اورگډی، ورانکاری، منځډوبی |
| استیلاگر | تېری کوونکی | نیواکگر، بلوسگر |
| یورشگر (چپاولگر) | یرغل کوونکی | یرغلگر |
| یغماگر | چپاولگر | تالانگر، لوټمار |
| خیانت گر(خیانت کار) | _ | ناامانتگر |
| اشغالگر | اشغالوونکی | نیواکگر |
| اغازگر | پیل کوونکی | پیلگر، پیلامگر |
| اعتصابگر | اعتصاب کوونکی | کاربندی، کاربند گر |
| پالیز گر | پالېز ساتونکی | پالېزوان |
| پرداختگر | صیقل کوونکی | سوان کار، پالشکار |
| تمثالگر | رسام | ځېره کښ، انځورگر |
| توانگر | شتمن | شتمن، موړ، بډای |
| تیز گر | تېره کوونکی | باټگر |
| جلوه گر | جلوه گر | ځرگند ، جوله گر |
| چرمگر | څرمن جوړوونکی | څرمن ساز |
| چلینگر (قفل ساز) | کلپ جوړوونکی | جندره گر |
| حسابگر (راستگو) | حسابوونکی، محاسب | پاک زړی، گڼگر |
| حیله گر | چلباز | ټگ، ټگمار، چلي |
| دادگر(دادگستر) | عدل پالونکی | نیاومن، نیاووال |
| دیباگر (ابریشم باف) | و رېښم اوبدونکی | ورېښمگر |
| رویگر (مسگر) | مسگر | ټټار |
| ریخته گر | تویوونکی | تویاند ، کالب ساز |
| زین گر (زین ساز) | زین جوړونکی | زین ساز |
| سفتگر | امېل جوړونکی | پېیونکی، پیاند |

| | | |
|---|---|---|
| سوداگر | تجار | سوداگر |
| شستگر | غشی ویشتونکی | لیندی، ویشتونکی |
| شیوه گر (عشوه گر) | ناز کوونکی | ښیوه گر |
| فریبگر (فریبکار) | غولوونکی | مارغیتل، دوکمار، تګمار، دروهجن |
| قلعه گر (سفید گر) | سپینوونکی | ټټار |
| کاسه گر (کوزه گر) | کاسه/کوزه جوړوونکی | خاورین ساز، کمباړ، کولال |
| کاغذگر | کاغذ جوړوونکی | کاغذ ساز |
| کالبدگر (پیکر ساز) | مجسمه ساز | پژگر |
| کفش گر (کفش دوز) | پنې گنډونکی | موچي،چمیار |
| گازرگر(گازر) | کالي مینځونکی | دوبي، ولاند |
| گداگر(درویزه گر) | گدایي گر | درویزگر، سوالگر، بسپن غاړی |
| گوهرگر (جوهری) | جوهری | زرگر، گوهری |
| مداخله گر | مداخله گر | لاس منډی، لاسوهاند |
| منگیا گر (قمارباز) | قمار وهونکی | جوارگر |
| نیزه گر (نیزه ساز) | نېزه جوړوونکی | شلگر، سانگر |
| وجین گر(خیشاوه گر) | للون کوونکی | گوډگر، للونگر |
| ورزش گر | ورزش کوونکی | لوبغاړی،ورزشکار |
| یاریگر | کومکي | مرستیال، مرستدوی، مرستی |
| کیمیاگر | _ | کیمیا گر |
| کمایی گر | گټونکی | گټیالی |
| پیداگر | پیداکوونکی | گټیالی، پیداگر |
| ویرانگر | ورانونکی | ورانکار (ی)، اورگډی |
| ستمگر | ظالم | گرگر |
| بیدادگر | _ | _ |
| چاره گر (چاره ساز) | چاره کوونکی | چاره گر، کارساز |
| شناگر | لامبووهونکی | لامبوزن |
| تلاش گر | تلاش کوونکی | هڅند ، هڅاند |
| جستجو گر | _ | پلټند ، لټونکی |
| چاپ گر | چاپوونکی | چاپگر |

| | | |
|---|---|---|
| تهمت گر | تور لگوونکی | تورلگاو، توراند، تور گر |
| عشوه گر | ناز کوونکی | ښېوه گر |
| دژمگر(دلتنگ) | ډیپرېسډ(پ) | خولجن، گرومجن، زړه تنگی |
| لواطگر(بچه باز) | _ | (هلك) ډاگی |
| داشگر | خښتې پخوونکی | بټوان، بټۍ وال |
| افشاگر | افشا کوونکی | اشواگر |
| امحاگر | امحا کوونکی | نشتاند |
| خنیاگر | _ | سندر غاړی، سرورگر |

۳- په -کار - روستاړی پارسي بیلنگونه (اشتقاقونه) له -گراو- گاروالا هغو سره دومره توپیر نه لري. له تاریخي پلوه دغه درې واړه روستاړي د پښتو او پارسۍ ترمنځ په یوې گډې آرې (منشا) پسې ځي او لا اوس هم دربواړه چارنو میزه (فاعلي) پاژه تر سره کوي، هم دومره چې تر پښتو یې په پارسۍ کې کارونه ډیره ده او د ځینو پر وړاندې یې پښتو نور ځانگړي انډولونه (لکه چار...) لري. پښتو زیاتره تر-کار-گر- ډیر کاروي او له دواړو سره لږو ډیر پایله (-ی) هم ملگرې کوي. دې ته هم پاملرنه پکار ده چې پارسي- کارد(کړن) پر ما ناسر بیره دکر او کښت هغه هم لري، لکه په پخته کار، پنبه کار او کشتکار کې. په ایرانی پارسۍ کې یې د - گر غوندې په لومړنۍ مانا کارونه بیخي زیاته ده او کله مانانو میز چار هم څرگندوي ، لکه په ریسمان کار (موازنه - رجه) یا شاهکار کې. پښتو ژباړونکي دواړه روستاړی پارسي انگیري او په ناسمه اوگرانه توگه یې پر- ونکی اړوي!

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| تجاوزکار | تجاوز کوونکی | بلوسگر، تېرو |
| جنایتکار | جنایت کوونکی | جنایت کار، بدکاری |
| خیانت کار(سگر) | خیانت کوونکی، خاین | ناامانتگر |
| ورزشکار | ورزش کوونکی | ورزش کار، لوبغاړی |
| جفاکار | ظالم | گرگر |
| محافظه کار | محافظه کار، زاړه پال | ځانساتی، کاغ |
| احتیاط کار | احتیاط کوونکی | ځانساتی، پامیالی |
| بیکار | بې روزگار (پ) | بېکار، وزگار |

| | | |
|---|---|---|
| شب کار (شوکار) | _ | شپه کاری |
| سردمدار | _ | سرکښ، سروال |
| سنگ کار | _ | ډبرکار |
| سیمان کار | _ | سېمېنټ کار |
| بدکار | بدکار | بدکاری، بدوردی |
| نیکو کار (درستکار) | نېکي کوونکی | نېککاری، نېکچاری |
| شاهکار (شهکار) | کارنامه | شاهکار |
| گناهکار | ملزم | گناهگار |
| خامکار | _ | خامکاری |
| تازه کار | _ | تازه کار، نوکار(_ی) |
| نوبت کار | _ | وارگر(کارگر) |
| نوکار | _ | نوکاری، تازه کار |
| فراموشکار | هېروونکی | هېرزړی |
| کشتکار | دهقان | کښتگر، کرگر، کروندگر |
| هنرکار | تکنیشن | تخنیکر |
| پخته کار(پنبه کار) | پومبه کرونکی | پومبه کار |
| مزدورکار | زیار اېستونکی | مزدورکار، زیارکښ |
| غریبکار | غریبکار | مزدور،خواري کښ، مزدورکار |
| فداکار | فداکار | سرتېر، سرښندوی، نیکچاری |
| راست کار | نیك کار | رښتین، رښتینی، رښتیانی، نېکچاری |
| خلافکار | _ | ورانکار |
| افسونکار | _ | جادوگر، افسونگر، کوډگر |
| رضاکار | رضاکار | خوښچاری، خپلخوښکاری |
| سرکار | دولت، حکومت، رسمیات | سرکار |
| زناکار | زناکوونکی | زناکار |
| فریبکار | غوولونکی | ټگمار، دروهجن، مارغیتل |
| جعلکار(ساخته کار) | - | درغلگر |

| | | |
|---|---|---|
| دست اندر کار (دست در کار) | - | بوخت، بوختی |
| سیاه کار | بدفعله | تورکار، بدورد |
| استکار (دستکار) | - | وستاکار، ورهڼگر |
| پیشکار | ناظر | مخکاری |
| تباهکار (تبهکار) | تباه کوونکی | اورگډی |
| زیانکار مضر - ضرر رسوونکی | زیانکار | ورانکاری |
| خرابکار | خرابکاری | ورانکار، ورانکاری |
| خطاکار | خطاکوونکی | بدکاری |
| تمیزکار | ـ | پاك کاری، سپیناوو، ځیرمن |
| پشت کار | زحمت - کوشش | کاروزیار، هاندوهڅه |
| جعلکار (تقلب کار) | جعل کار | دروهجن، درغلند، درغلگر |
| کسبه کار | کسب کار | کسبگر، ورهڼگر |
| خرده کار | رر | رر |
| کهنه کار | زاړه پال | زوړکاری، زوړچاری، زوړپال |
| طلاکار | طلا کاری | زرگر |
| فضول کار | خرابکار | بدکار، سپك ورك، بدورد |
| کلانکار | کلانکار | سترچاری ،لوی چاری |
| وجین کار | للون کوونکی | گوډگر، للونکار، للونگر |
| پرکار | ـ | ډیرکاری، کارند |
| پرکار | پرکار | پرکال |
| خرکار | خرچلوونکی | خرکار، خروالا |
| چاریکار | دهقان | کروی |
| پایکار(پاکار) | ـ | مرستی، مرستندوی، مرستیال |
| آتشکار | اوربلوونکی | اورگډی، تودوونکی |
| بیکار | ـ | وزگار، بیکار |
| گلکار | گلکار | خټگر، اخیړگر |
| خودکار | خودکار | خپل چاری، خپل کاری |

| | | |
|---|---|---|
| | | (اتوماتیك) |
| کاستکار | _ | دروغجن |
| کهنه کار | _ | ازمېښتکار، پوخ ازمېښتی |
| فلزکار(فلزگر) | _ | فېلزکار |
| ماشینکار | ماشین چلوونکی | ماشین کار |
| بسته کار | _ | بسته کار (تاجیکی: اهنگساز) |
| ولدنگ کار(جوشکار) | وېلډېنگکار | ویلگر |
| سفیدکار(_گر) | سپینوونکی | ټټهار |
| برمه کار | _ | برمه کار، تېځاند |
| پیکار | پیکار | جگړه |
| کاروپیکار | کاروپیکار | هلی ځلی، هاندوهځه |
| نابکار (خطاکار) | ناهله | بدکاری، بدچاری، ناکاره، بدورد |
| ناکار | _ | ناکار(ه) |
| غفلت کار (مسامحه کار، سهل انگار) | | ناغېړی |
| تیزکار | تېره کوونکی | تېز کاری، څرخ گر، باټگر |
| ریاکار | ریاکوونکی | ریاکار |
| ویرانکار (بیران کار) | _ | ورانکاری |
| شبکار | شوکار | شپه کاری |
| روزکار | _ | ورځکاری |
| فتنه کار | فتنه کار | اورگډی، پتنه گر |
| صنعتکار | _ | رغاوگر |
| سوارکار | سوار کار | سپور، سپرلو |
| همکار | مرستیال | همکار |
| سوهان کار | _ | سوانکار |
| دسیسه کار | دسیسه کوونکی | دسیسه کار،ټگ و برگ |
| میناکار(_گر) | _ | مینا کاری |
| کندکار | تنبل | سست کاری |
| کنده کار(کندن کار) | _ | توږاند |
| ریزه کار | دقیق | ځیر |
| سرشته کار | سرشته کوونکی | کارساز |

| | | |
|---|---|---|
| رویکار | - | ترکارلاندې، دود |
| هوسکار | هوسباز | هوسناك، هوسی |
| اجاره کار | اجاره کار | اجاره گر، اجاره والا، ټیکه وال |
| اجوره کار | - | مزدکار، مزدورکار |
| دستمزدکار | - | لاسباړی، مزدکار |
| نیلکار | رنگریز | (شین) چمبی |
| تجربه کار | تجربه لرونکی | ازمېښتي، ازمېښتکار |
| آزمایش کار | رر | رر |
| نهان کار | _ | پټ کاری، پټ چاری |
| اندود کار(اندودگر) | _ | پاك کار(ی) |
| اهمال کار | _ | لټ، ناغېړي، سستکاری |
| خیانتکار | خیانتکوونکی | خیانتکار |
| امانت کار | امانت ساتونکی | امانت کار، امانت گر |
| توبه کار | توبه کوونکی | توبه گار |
| تلف کار | تلفکوونکی | اورگډی، ورانکاری |
| تخریبکار | تخریبکار | ورانکاری |
| مرصع کار | _ | جړاوو |
| صلاح کار | _ | سلا کار |
| ستمکار | ستمگر | گرگر |
| سازش کار | سازش کوونکی | سازښتي، سازښتکاری |
| ساخته کار | ساخته کاری | درغلگر |
| مسالمت کار | مسالمت کوونکی | روغه وال، سوله ییز |
| مسامحه | _ | ناغېړي، لټي، سستکاري |
| مشتبه کار | اشتباه کوونکی | ختاکار، ورانکاری |
| هیچکاره | هیچکاره | هېڅکاره، بېکاره |

**۴ - په -گار** روستاړی پارسي بېلنگونه ، لکه چې د (۳-کار) په برخه کې وویل شول ، هماغه ډول جوړښتونه رااخلي چې په -گراو- کار روستاړي کېږي. پښتو ښايي له (وزگار) او (ناگار) نه پرته بل داسې بېلنگ ونه پیژني، نو له دې کبله یې پر- گراو نورو ورته (چارنومیز) روستاړواړوي. دا دی ، نوموړي بېلنگونه په دې وروسته لیکلړکې وړاندې کېږي:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| خداوندگار | ـ | خداوند |
| ماندگار | باقي | تلپاتی، پایند |
| ستمگار | ظالم | گرگر |
| افگار | زخمی | خوږ، ټپی، ژوبل، غوڅ |
| دل افگار(دل فگار) | زخمی | زخمي زړی، څانگغوڅ |
| تنفگار | زخمي | خوږ، ژوبل |
| روزگار | روزگار | ژوند ، مهال، ورځې شپې |
| سازگار | موافق | سازکار، (سره) جوړ |
| ناسازگار | ناموافق | ناباندې |
| مددگار | ـ | مرستیال، مرستندوی، مرستی |
| کامگار(کامیار_کامیاب) | کامیاب | بریالی، بختور، نېکمرغه |
| یادگار | یادونه | یادگار |
| آموزگار | ښوونکی | ښوونکی،استاد، ښووائد |
| آمرزگار | ښښونکی | ښښاند |
| آفریده گار | خالق | پنځگر، پنځاند، پنځوال |
| کردگار | کردگار | کړاند ،کارندوی، کارواك |
| پروردگار | پروردگار | پالیال |
| توبه گار (توبه کار) | ـ | توبه گار |
| خواستگار | ـ | مرکچي، بلوني، غرښتونکی |
| بیگار | ـ | بېگار |
| رستگار | خلاص | ژغورلی،ازاد، پخشو، زغړ |
| سپوزگار | تنبل | لټ، ناغیړی، سستکاری |
| خدمتگار | خدمتگار | خدمتگار |
| پرهیزگار | پرهېزگار | نمنځچار، پالوال |

۵ - په - ساز روستاړی پارسي ببلنگونه (اشتقاقونه) کېدای شي، لږو ډېر په پښتو کې هم پر - ساز روستاړي ببلنگو نووا وړي. ځینې پښتو لیکوال او ژباړن هغه د پارسي او پښتو گډ مال نه بولي او هڅه کوي، پر (جوړوونکی) یې واړوي او په دې توگه پښتو انډول تر پارسي هغه اوږد او گران کړي، لکه دوران جوړوونکی، ساعت جوړوونکی،جهان جوړوونکی، سرنوشت یا برخلیك جوړوونکی... چې

باید دورانساز یا دورانسازی، ساعت ساز یا ساعت سازی او داسې نور یې وژباړي. ځکه سازېدل او سازول له پښتو کړو(فعلونو) څخه شمېرل کېږی. دادی دلته یې څو بیلگې په لیکلړ کې وړاندې کېږي:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
| --- | --- | --- |
| خودساز | – | ځانجوړی، ځانسازی، غاور |
| اسلحه ساز | – | وسله ساز، درسته ساز |
| دورانساز | دوران جوړونکی | دوران ساز(ی) |
| تاریخ ساز | تاریخ جوړوونکی | تاریخ ساز(ی) |
| قفل ساز | کولپ ساز | ژندره گر |
| کلیدساز | کیلي جوړوونکی | کیلي ساز |
| دواساز | – | داروساز، درملساز |
| زمینه ساز | زمینه جوړوونکی | لارهواری |
| جهانساز | جهان جوړوونکی | جهانساز(ی) |
| ساعت ساز | ساعت جوړوونکی | گړیوال، گړۍ ساز |
| صحنه ساز | صحنه جوړوونکی | نندار ښود |
| سرنوشت ساز | سرنوشت جوړوونکی | برخلیك ساز(ی) |
| بهانه ساز | پلمه جوړوونکی | پلمه ساز، پلمه گر |
| زندگی ساز | ژوندجوړوونکی | ژوندساز(ی) |
| دندانساز | غاښ جوړوونکی | غاښ ساز(ی)، غاښ رغاند |
| شانه ساز | – | ږمنځ سازی |
| شمع ساز(شمعریز) | – | شمرغاند |
| حماسه ساز | حماسه جوړوونکی | میړنی،توریالی،بولنبول |
| باز ساز | سوخت وساز، مېټابولېزم | بیارغاند |
| چاره ساز | – | چاره ساز، کارساز، چاره گر |
| شمشیر ساز | – | تورپښ |
| چاقو ساز | – | چاکوگر، چاړه ساز |
| مبل (موبل) ساز | – | وتري ساز، ترکاڼ |
| آهنگ ساز | کمپونېست | سندر ساز |
| لانه ساز | – | ځاله، رغی |
| بسیار خوار (پرخور) | – | نسو، نسور، خېټو، خېټور، ډېرخور |
| مرده خوار(لاشخور) | – | گورگټی، درنگه خور |

| | | |
|---|---|---|
| مردم خوار | ـ | سړیخور |

۶ - په **خوار** - او - **خور** روستاړو پارسي بېلنګونه بې استثنا په (- خور) پښتو کېدای شي، ځکه د سړیخور - سودخور، بډیخور، ځیره خور غوندې بېلګې مخکې له مخکې تیارې په ګړنۍ پښتو کې لرو، پراختیا موندلی بڼه یې، لکه په رشوت خوری او خویش خوری کې پر (بډې خوري) او (خپل پالنه) ژباړل کېدای شي:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| ګیاه خوار | ګیاه خوړونکی | ګیاخور |
| ګوشتخوار | غوښه خوړونکی | غوښخور |
| جهانخوار | نړی خوړونکی | نړیخور |
| مفتخوار | مفتخور | تیار خور |
| انسان یا آدم خوار | سړی خوړونکی | سړیخور |
| نشخوار | ـ | شخوند |
| میخوار | شرابخور | شرابي |
| قسم خور | قسم خوړونکی | قسم خور، سوګند خور، لووړی |
| سرخور | سرخوړوونکی، سرخوړلی | پس مرګي (زبړېدلی) |
| رشوه خوار(رشوه ستان) | بډیخوړونکی | بډیخور |
| جیره خوار | جیره خور | ځیره خور |
| سود خوار(سودخور) | سودخوړونکی | سودخور |
| غصه خور | غمېدونکی، زړه خوړینی، غمزغمی | |
| معاش خوار(ـخور) | معاش خور | تنخا خور |
| شیرخوار | شودې خوړونکی | تیروی، شودېخور |
| ماهیخور(ـخوار) | ـ | ماهی خورك |

۷ - په – سوز روستاړی پارسي بېلنګو نه هم په همدې روستاړي پښتو کېدای شي، ځکه- سوز - سوځ پښتو کړولۍ هم بلل کېږي، په بله وینا، د دواړو نژدې خپلوانو ژبو تر منځ تاریخي تړاو لري.

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| خانمانسوز | کورنۍ سوزوونکی | اورګډی،کور ګډی |
| آتشسوز | اوربلوونکی | اورګډی |

| | | |
|---|---|---|
| جگر سوز | ځیگر سوزوونکی | ځیگر سوز |
| دلسوز | زړه سوزوونکی | زړه سواند ، خواخوږی |
| خود سوز(جانسوز) | ځان سوزوونکی | ځانسواند ، ځانویجاړی، ځانسوز |
| هستی سوز | ژوند سوزوونکی | هستی سوز، ژوندسوز |
| زندگی سوز | – | – |
| جهانسوز | نړۍ سوزوونکی | نړی سوز، جهانسوز |
| دلسوز | زړه سوزوونکی | زړه سواند ، خوا خوږی |
| ناسوز(نسوز) | نه سوزېدونکی | ناسوند |
| خرمن سوز | درمند سوزوونکی | درمن سوز |
| جانسوز (خودسوز) | ځان سوزوونکی | ځانسوز |
| خام سوز | خام سوځلی | اوم سوی |

۸ - په - کن او - کننده روستاړي (پارسي) بېلنګونه له هماغې ډلې څخه دي چې هم ډېر دي او هم يې پښتو اندولونه ډېر لږ پر نورو روستاړو بدلېدای شي. که څه هم له تاريخي پلوه ټولې اريايي ژبې د عربی (**فعل**) پر وړاندې دوې کړولی یا بنسټونه لري. کن (کول) او کر(کړل)، مگر، لکه څنګه چې له مخه وويل شول، يوازې پارسي ژبه ده چې هغه د روستاړي په بڼه هم کاروي او د نورو ژبو غوندې پښتو هم اړ وځي چې هغه پر کوونکی يا ـ ونکی يا نورو کړنو ميزو روستاړو (فعلي پسوندو) واړوي، په ليکلړ کې يې وګورئ:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| کارکن (فعال) | فعال، کارکن (پ) | کارنده،تکړه، کارمن |
| بازی کن | لوبی کوونکی | لوبغاړی |
| اشتراك كننده | گډون کوونکی ـ | برخه اخېستونکی، برخوال، گډونوال |
| وانمود کننده (نموددار) | | ښکارندوی |
| رهبری کننده | رهبری کوونکی | لارښود |
| خفه کن | خپه کوونکی | زندۍکوونکی، سابندی |
| گمراه کن ـ کننده | گمراه کوونکی | بیلارې کوونکی |
| تهیه کننده | تهیه کوونکی | تیاروونکی، برابروونکی |
| خورد کننده | وړوکی کوونکی | ماتوونکی، دړې وړې کوونکی |
| کارکن | کارکن (پښتونخوا) | کارندوی(اکټيو پسټ) |

**۹ - په - ده او - دهنده** روستاړو پارسي بیلنگو نه له پخوا نه هم ډیر وه او نن پسې نور هم مخ پر زیاتېدو دي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| فرمانده | قوماندان | بولندوی |
| مدادپاکن | پنسل پاك | وچکنپاك |
| بهره ده | استثمار شوی | زیېښلی |
| سازمان ده(دهنده) | سازمان ورکوونکی | سازمانوونکی |
| سمتده (دهنده) | لوری ورکوونکی | لورسیخی، لوربنود |
| وام ده(دهنده) | پور ورکوونکی | پوروړی |
| خاتمه ـ پایان دهنده | خاتمه ورکوونکی | پای ورکوونکی |
| ضربه دهنده | ضربه ورکوونکی | گوزارورکوونکی، ځبند |
| عبرت دهنده | عبر ورکوونکی | لوستندوی |
| اخطار دهنده | خبرداری ورکوونکی | گواښنده، گواښگر، گواښگرندی |
| بیانیه دهنده | ویناکوونکی | ویناوال |
| ازار دهنده | ازارورکوونکی | ازاروونکی، ځوراند |
| زجر دهنده | زجرورکوونکی | ازاروونکی،ځوراند |
| شکنجه دهنده | شکنجه ورکوونکی | شکنجه مار، سپېتاند |

**۱۰- په - جو یا - طلب** روستاړي جوړشوي پارسي بېلنگونه هم نن سبا لړو ډیر مخ پر زیاتېدو دي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| ستیزه جو(ستیزگر، جنگره) | ـ | جگړه مار |
| صرف جو | ـ | سپماگر |
| آبجو | ماهي | کب |
| صلحجو | سوله غوښتونکی | روغه وال، سوله من |
| کینه جو(کینه توز) | کینه کښ | رخن، گرجن |
| هنر جو | ـ | هنرمند |
| پیکار جو | جنگ غوښتونکی | جنگیالی، مېړنی |
| رزمجو | ـ | ـ |

| | | |
|---|---|---|
| مرکز جو | – | منځۍ هڅی |
| دلجو | – | خواخوږی، زړه سواند |
| فرصت جو | لټوونکی | څوگیر |
| توسعه جو | پراختیاغوښتونکی | پراختیاپال، پراختیاهڅی |
| برتری جو (تفوق طلب) | لوړتیا غوښتونکی | لوړهڅی |
| حقیقت جو (حقیقت یاب) | حقیقت لټوونکی | رښتیا پال |
| ماجرا جو (مخاطره جو) | ماجرا غوښتونکی | غرغره یي، بلا غواړی، بلاپېړی، ډانگه یي |
| نوجو | نوی غوښتونکی | نوهڅی، نوپال |
| استفاده جو (سودجو) | استفاده کوونکی | شوکمار، سودپال |
| بهره جو | استثمارگر | زبېښاکگر |
| فتنه جو | فتنه غوښتونکی | پتنه گر |
| دانشجو | محصل | زده کړیال، شاگرد |
| نامجو | شهرت غوښتونکی | نومپال |
| پناه جو | پنا غوښتونکی | پناغاړی، شوغاړی |
| عیب جو | – | ویارسپړی، ویارغاړی |
| بهانه جو (بهانه گیر) | پلمه ساز(ی) | |

۱۱- پ - انداز - یا - افگن روستاړی پارسي بیلنگونه هم باید تروسې وسې د لنډوالي او آسانۍ آر (اصل) ته په پام سره پر نږه انډولونو واړول شي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| راه انداز(ی) | پرلاره اچوونکی | رامنځته کوونکی (رامنځته کړن) |
| خانه بر انداز | کورړنگی | کور گډی،کور ورانی |
| پس انداز | پس انداز | پاسره، سپما، زېرمه |
| سر انداز | سرانداز | مخپوښ (غالۍ) |
| خاك انداز | خاك انداز | ټټۍ |
| راکت انداز | راکت انداز | توغند ارتی |
| جغله انداز | کریړاچوونکی | کاړارتی |
| سکه انداز (اتومات) | سکه اچوونکی | سکه یي |

| | | |
|---|---|---|
| شرانداز | شراچوونکی | پتنه گر_ اورگډی |
| نظر انداز(چشم انداز) | نظرانداز (کول، له پامه غورځول- پ) | کتنه، پاملرنه (ستر گارت) |
| چاپ انداز | لوبغاړی | وزلوبغاړی |
| دهشت افگن (تروروست) | دهشت گرد (پ) | ترهگر |
| دژافگن | _ | کوټ ماتی |
| شیر افگن | زمری غورځوونکی | زمرماتی |
| سایه افگن | _ | سیورارتی |

۱۲- په - آمیز روستاړي پارسي ستانومیز بښلنگونه (صفتي مشتقات) هم له پښتو ژباړنو لوری لودن ورکوي او پر ډېرو گرانوانډ ولونوېي راړوي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| فاجعه آمیز | د فاجعې ډک | بخولیز، ناتاریز |
| قهر آمیز | له قهره ډک | قهرژلی |
| افتضاح آمیز (فضیحت آمیز) | له شرمه ډک | شرمېدلی، رسوا |
| نصیحت آمیز | _ | ورموزمه |
| صلح آمیز | له سولی نه ډک | سوله ییز، روغه ییز |
| غرض آمیز | غرضي | موخیز، دښمنانه |
| مسالمت آمیز | له مسالمته ډک | سوله ییز، روغه ییز |
| هیجان آمیز | هیجانی | پاروونکی، پارند |
| محبت آمیز | له مینې ډک | مینه وړی |
| خصومت آمیز | _ | دښمنانه |
| سحر آمیز | له سحر نه ډک | جادوگرانه |
| گله آمیز | له گېلی نه ډک | گیله من، ماڼیجن |
| شرارت آمیز | _ | اورپکوزمه |
| طنز آمیز | له طنزه ډک | لغازي |
| طعنه آمیز | له پېغوره ډک | پېغور ډوله |
| شفاعت آمیز | خیر خواهانه | نرمښتي |
| شکایت آمیز | له گیلې ډک | پلپوټډوله |
| شهوت آمیز(انگیز) | _ | خارښتي |
| توهین آمیز(تحقیر آمیز) | له سپکاوي ډک | سپکاوي وزمه، خندنی |

| | | |
|---|---|---|
| انتقاد آمیز | انتقادي | نیوکډوله |
| افتحار آمیز | له ویاړه ډك | ویاړلی، ویاړمن |
| مبالغه آمیز | _ | ښندیز |
| شگفت آمیز (-انگیز) | اریانوونکی | هېښنده |
| شتاب آمیز (عجولانه) | _ | بېړنوزمه، بېړنی |
| جنایت آمیز | _ | جنایتکارانه |
| مسخره آمیز | _ | خندیوزمه، خندنی |
| کفر آمیز | - | کفروزمه |

۱۳ - په - آور روستاړی پارسي بېلنگونه د نورو چار نومیز بېلنگونو غوندې زیاتره پښتو ژباړن او لیکوال د (راوړونکي) په زیاتولو پښتو ته رااړوي او هیڅ په دې پسې سرنه گرځوي چې روان، لنډ او اسان انډول ورته پیدا کړي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| درد آور | دردوونکی | دردناك |
| رنج آور | رنځوونکی | ځورند، خواشینی<br>کوونکی |
| خوی آور (عرق آور) | _ | خولن، خوله ماتی |
| هیجان آور | پاروونکی | پارند |
| یاد آور | یادوونکی | یادوړی |
| زبان آور | زباندار | ژبور |
| دلاور (دلیر) | دلاور | زړور |
| فراهم آور | _ | تیارگر |
| اشتها آور | اشتها راوړونکی | لوهن، خورمنځی |
| شرم آور | شرم راوړونکی | شرمور، خنگن |
| سرسامه آور | _ | سرساموونکی، سرساموزمه |
| خجالت آور | شرم راوړونکی | شرمور، خنگن |
| سقط آور | _ | سپیازور |
| سکر آور | مخدر | نشه بیز، نشه یي |
| حمله آور | حمله کوونکی | یرغلگر |
| بار آور (بارور) | مثمر | یېبرور |
| نشاط آور | _ | خوښند |

| | | |
|---|---|---|
| نام آور (نامور) | نامدار | نوماند، نومور |
| آشك آور | اوښكي بهوونكى | اوښكن، اوښلن |
| رزم آور | جگړه مار | جنگيالى |
| خنده آور | - | خنداوړ، خندى وړ |
| زور آور | قوى | زوروړ |
| جنگ آور | جگړه مار | جنگيالى، جنگيالى |
| ننگآور | ننگين | شرمور |
| پيام آور | پيغام راوړونكى | استوزگر، استازى |
| شگفتى آور، شگرف آور | اريانوونكى | هېښنده |
| مژده آور | زېرى كوونكى | زيريگر، زيريگرندى |
| عطش آور (عطشه آور) | تنده راوړنكى | تندوړى، تندغرى |
| اختناق آور | خپگان ډكى | زندى گرانه |

۱۴- په - شکن روستاړى پارسي بېلنگونه په اسانه كېداى شي، په مات يا ماتى والا پښتو بېلنگونو، په بله وينا، ترړنگونو (تركيبونو) وژباړل شي، نه په - ما توو نكي چې د لنډون او اسانى آر له منځه وړي او ويونكى ترې هماغه پارسي انډول زيات خوښوى . حال دا چې په گړنى پښتو كې نظرماتى، اودس ماتي، سر ماتى او غاښ ماتى، روژه ماتى غوندې انډولونه يې له پخوا دود لرى، لكه:

| پارسي | ناكره پښتو | كره پښتو |
|---|---|---|
| زنجير شكن | زنجير ماتوونكى | زنځير ماتى |
| سنگ شكن | تيږه ماتوونكى | كاڼي ټك |
| دندان شكن | غاښ ماتوونكى | غاښ ماتى |
| كمر شكن | ملا ماتوونكى | ملا ماتى |
| سرشكن | سرماتوونكى | سرماتى |
| لشكرشكن | لښكر ماتوونكى | لښكر ماتى |
| توبه شكن | توبه ماتوونكى | توبه ماتى |
| وضو شكن | اودس ماتوونكى | اودس ماتى |
| دشمن شكن | دښمن ماتوونكى | دښمن ماتى |
| ناوشكن | كشتى ماتوونكى | بېړى ماتى |
| بت شكن | بت ماتوونكى | بوت ماتى |
| باد شكن | بادماتوونكى | باد ماتى |

| | | |
|---|---|---|
| موج شکن | موج ماتی | څپه ماتی |
| عهد شکن (پیمان شکن) | وعده خلاف | ژمنماتی |
| سوگند شکن | _ | سوگندماتی |
| چوب شکن | دلرگوماتوونکی | لرگبه |
| ناشکن | ناماتېدونی | ناماتی |
| زود شکن | ژرماتېدونی | ژرماتی |
| استخوان شکن | هډماتوونکی | هډماتی |

۱۵- په - مند روستاړی پارسي ښېلنگونه هم د ډېر پښتو ژباړونکي او لیکونکي د - لرونکی په ملتیا پښتو کوي. حال دا چې په - وال او - من یا مند غوندې لنډو اسانو ښېلنگونو د ډېر ښه ژباړل کېدای شی. ځکه - من او - مندد دواړو ژبو ترمنځ گډون لري، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| کارمند | مامور | کارمن، کارمند |
| علاقه مند | علاقه لرونکی | مینه وال، لیوال |
| غنامند | غني | بډای |
| دردمند | دردمند | دردمن |
| هنر مند | _ | هنرمند |
| نیرومند | قوي | ځواکمن، پیاوړی، غښتلی |
| زورمند | قوي | زورور، ځواکمن |
| فرهمند | _ | ځیرك، ویښیار |
| هدفمند | هدف لرونکی | موخن |
| سعادتمند | سعادتمند | نېکمرغه، نېکبخت |
| آرزو مند | ارزو لرونکی | هیله من |
| نیاز مند | اړتیا لرونکی | لاس اړی، اړ، اړجن، اړمن |
| آزمند | حرص لرونکی | سرانی، کاز من، اسوېلاند |
| بهره مند | برخه لرونکی | سودمن، برخمن |
| سودمند | _ | سودمن، سودمند |
| برومند | مثمر | یېبرور، یېبره من |
| آبرومند | ابرومند | پتیال، پتوال، پتمن |

۱۶ - په - آلود پارسي جوړښتونه هم ټکي پر ټکي پښتو ته راړول اړین نه دي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| غرض آلود | له غرض نه ډك | موخیز، غرضانه |
| گل آلود | په خټو ککړ | په خټو، چکړ، خړ، لېټ پېټ |
| خاك آلود | له خاورو نه ډك | لوغړن، سپېره، گردجن |
| دود آلود | له لوگی نه ډك | دودجن، لوغړن، لوگن |
| درد آلود | له درده ډك | دردناك، خوږند |
| غم آلود | له غمه ډك | غمجن، غم لړلی، ویرلړلی |
| قهر آلود | له قهره ډك | قهرژلی ـ قهروړی، ځاځېدلی |
| چرك آلود | مردار | خیرن، نون |
| غضب آلود | غضبناك | پرغزي |
| آشك آلود | له اوښکو ډك | اوښکن، اوښلن |
| آبر آلود | له ورېځو ډك | وریځ، اوریځ |
| خواب آلود | له خوبه ډك | خوبولی، خوبوړی، خوبجن |
| خون آلود | په وینو ککړ | وینی ککړ، وینړی |
| کف آلود | ځگن | ځگلن |
| زهر آلود (زهر آگین) | له زهرو نه ډك | زهرجن، زهرژلی |
| خاکستر آلود | ایرن | په ایرو ککړ، لوغړن |
| گرد آلود | له گردو ډك | گردجن، گرزن، دوړن |
| غبار آلود | ـ | ـ |

۱۷ - په - **خواه** روستاړی پارسي بیلنگونه د - طلب او - جو هغوته ورته دی او په همدې توگه ورته وړ پښتو انډولونه موندلای شو، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| خودخواه | مغرور | ځانغاړی، غاور |
| دادخواه | عدل غوښتونکی | غاوچي، پریادي |
| تجزیه خواه | تجزیه - بیلتون غوښتونکی | بیلتونپال |
| بشرخواه | بشر غوښتونکی | وگړمین، وگړپال، بشردوست |
| وطنخواه | هیواد غوښتونکی | هیوادمین، هېوادپال |
| ترقیخواه | ترقی پسند (پ) | پرمختگ مینی |

| | | |
|---|---|---|
| هوا خواه | هواخواه | مینه وال، لېوال، پلوي |
| جاه طلب | _ | پوړۍ پال |
| خیرخواه | خیر غوښتونکی | نېکپال |
| نیکخواه | رر رر | نېکپال |
| کینخواه | کینه کوونکی | کینه کښ، گرجن، رخن، کینه ناک، کیخن |
| بدخواه | بدخواه | بدورد |
| ملت خواه | ملت غوښتونکی | ولسپال |
| آزاد یخواه | حریت پسند (پ) | آزادیپال، آزادلوښی، خپلواکي مین |
| عذرخواه | _ | ننواتی |

۱۸- په - نورد - پیما او - گرد - روستاړی جوړ شوي پارسي بېلنگونه هم پښتو ژباړونکو ته لږو ډېر ستونزمن برېښي او په ناسم ډول یې کله په - وهونکی او کله په - گر ځېدونکی والا بېلنگونو پښتو ته رااړوي. یوازې پرمخ تللې بڼه یې (- نوردي) پر- چلند اړولې، لکه: هوا نوردي (هوایی چلند) چې د اروانښاد ارسلان سلیمی جوړونه ده:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| رهنورد | لاروهونکی | لاروی |
| کوهنورد(کوهگرد) | د غره گرځېدونکی | غرگرځی |
| بیابان نورد (_گرد) | بیدیا گرځېدونکی | بیدیا گرځی |
| صحرانورد | _ | _ |
| هوانورد (خلبان) | هوا گرځیدونکی | هوا گرځی، پیلوټ، الوتاند |
| جهان نورد (جهانگرد) | نړۍ گرځېدونکی | نړیگرځی، نړۍ گرځند |
| فضانور د | ستورمزلی | هسك یونی، تشیالیونی |
| کیهان نورد | _ | _ |
| دریانور | د سمندر گرځېدونکی | سمندر گرځی، ماڼو |

۱۹- په - فروش روستاړی پارسي بیلنگونه هم زیاتره ژباړونکي پر (خر څوونکي) هغو راړوي او په لوی لاس یې اوږدوي او گرانوي، حال دا چې پر - پلور یا - پلوري - والا او داسې نورو ډېر روان ژباړل کېدای شي، لکه:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| گهر فروش | جوهري | گوهري |
| گلفروش | گل خرڅوونکی | گل والا، گلپلوری |
| ذغال فروش | سکاره خرڅوونکی | سکاره والا |
| چوب فروش | لرگي خرڅوونکی | لرگبه، لرگي والا |
| دستفروش | لاس پر لاس پلورونکی | لاسپلوری |
| آردفروش | اوړه څرخوونکی | اوړبه، اوړه والا |
| سبزی فروش | سبزي خرڅوونکی | ساگ پلوری |
| برنج فروش | وربجې پلورونکی | وريجې والا |
| نمك فروش | مالگه پلورونکی | مالگه والا |
| وطنفروش (میهن فروش) | هېواد پلورونکی | هېواد پلوری |
| وجدان فروش | وجدان خرڅوونکی | وجدان پلوری |
| خود فروش | ځان خرڅوونکی | ځانښکاری، ځانپلوری |
| عمده فروش | عمده خرڅوونکی | ټولپلوری |
| پرچون فروش | پرچون خرڅوونکی | ټوکپلوری |
| میوه فروش | مېوه خرڅوونکی | مېوه پلوری |

۲۰- په، بان او ـ وان روستاړي پارسي بېلنگونه پر ـ به او ـ وان او داسې نورو ډېر ښه اړول کېدای شي. ښاغلي ژباړونکي دې دا وروسته بېلگې په پام کې ونيسي:

| پارسي | ناکره پښتو | کره پښتو |
|---|---|---|
| پاسبان | ـ | څوکيوال، ساتندوی |
| سرپاسبان(پولیس) | ـ | يو پوليسی افسر، سرڅارندوی |
| ساربان | د کاروان مشر | څاروان، جوپه مشر |
| زندانبان | د زندان مشر | بنديوان، زندانوان |
| پادوان | پاده وان | غوبه، گوروان |
| قلعه بان | ـ | کلا څاری |
| شتربان | اوښ والا | اوښبه |
| پیلبان | پيل ساتونکی | پيلوان |
| گله بان | رر | رر |
| بادبان | بادبان | بادوان |

| | | |
|---|---|---|
| میزبان | – | کوربه |
| ناوسروان | – | سمندري تورن |
| آسیابان (آسیاوان) | – | ژرنده ګړی |
| دیده بان | ناظر | څارو، څارونکی، کتونکی |
| شبان (چوپان) | – | شپون |
| رسد بان | لوراند | څارند (تورن پولیس) |
| باغبان | باغوان | بڼوال |
| دربان/دروازه بان | دروازه وان | څوکیوال، ورساتی، وربه |
| سایبان | – | کېږدۍ، چتر |
| سایه بان | – | چتر، تجیر |
| مهربان | – | مهربان، مهروان (مروت) |
| موټروان | موټرچلوونکی | چلوونکی ـ ګاډي والا |
| جهانبان | – | نړیواک، واکمن، خدای |
| پشتیبان | ملاتړکوونکی | ملا تړی |
| مرزبان | – | بریدساتی، څوکیوال، څارندوی |
| نرد بان | زینه | ښل |
| نگهبان | ساتونکی | ساتندوی، څوکیوال |
| جنگلبان (جنگلدار) | - | ځنګلوان |

۲۱- په - ګرا او - ګرایي، - پرست او - پرستي، - دار او - داري، دغه راز - سالار - سالاري او یا پسند - پسندي چې لاتینې او الماني انډولونه یې ایزموس او انګریزي هغه یې - ابزم او - بست دي، نن سبا په ځانګړې توګه د نوي پرمختللي نړۍ لید او نوي پوهنې د نومونپوهنې (ترمینالوجۍ) یوه غوره برخه جوړوي. په پښتو کې زیاتره د (پښتونواله) په بېلګه پر - واله او - وال اړول کېږي. لکه پانګواله او پانګه وال چې ناسم ډول یې پانګوالي هم دود شوی دی. ناسم په دې چې په نورو ورته- ابزمونو کې روان نه راځي او دیو رنګوالي له کبله باید تروسې وسې هر ځای- ابزم- پر-واله واړول شي، لکه:

| پارسي | انګرېزي | پښتو |
|---|---|---|
| اصلاح ګرا | رېفورمېست | سمونپال(ناسم:اصلاپال |
| همګرایی | – | هملاري، همهځي |
| همګرا | – | هملاری |
| سرمایه داری | کپیتالېزم | پانګواله |

| | | |
|---|---|---|
| سرمایه دار | کپیتالېست | پانگوال |
| وطن پرستی | پاتریوتېزم | هېوادواله - هېواد پالنه |
| وطن پرست | پاتریوت | هېوادپال |
| ملت پرستی ـ گرایی | نیشنلېزم | ولسواله، ولسپالنه |
| ملت پرست ـ گرا | نیشنلېست | ولسپال |
| جامعه گرایی | سوسیالیزم | ټولنواله |
| جامعه گرایی | سوسیالېزم | ټولنواله |
| جامعه گرا | سوسیالېست | ټولنوال |
| جامعه گرای تخیلی | - | انگیریزه ټولنواله |
| - ی تخیلی | اوتوپین | انگیریز ټولنوال |
| واقع گرایی | ریالېزم | رښتینواله |
| واقع گرایی نو | نیوریالېزم | نوې رښتینواله |
| واقع گرا | ریالېست | رښتینوال |
| واقع گرا ـ ی نو | نیو ـ ریالېست | نوی رښتینوال |
| گروهه گرایی/ مرد مداری | کمونېزم | پرگنواله |
| گروهه گرا | کمونیست | پرگنوال |
| مدرس گرایی | سکولاستېزم | ښوونځیواله |
| کثرت گرایی | پلورالېزم | ډېرواله |
| کثرت گرا | پلورالېست | ډېروال |
| کهن گرایی | ارکایېزم(ارخاییزم) | زړواله، زوړپالنه |
| کهن گرا | ارکاییست | زړ وال، زوړپال |
| طبیعت گرایی | نیچرالیزم (ناتورالیزم) | پنځواله |
| طبیعت گرا | نیچرالېست | پنځوال |
| ذهن گرایی | سبجکتیوېزم (سوبیکتیوېزم) | خپل اندواله |
| ذهن گرا | سبجکتیوېست | ـ وال |
| رفتار گرایی | بهیورېزم | چلندواله |
| رفتار گرا | بهیورېست | چلندوال |
| خرد گرایی | رېشنالېزم (راسیونالېزم) | سولواله |
| خردگرا | راسیونالېست | سولوال |
| تقدیر گرایی | فتالېزم | برخلیکواله |
| تقدیر گرا | فتالېست | برخلیکوال |
| بهره گرایی | اتیلیتاریانېزم | ښیگڼواله |

| | | |
|---|---|---|
| بهره گرا | اتیلیتاریانېست | ښیګڼوال |
| آینده گرایی | فیتو رېزم | راتلونواله |
| آینده گرا | فیتو رېست | راتلونوال |
| جهان گرایی | انترناسیونالېزم | نړیواله |
| - گرا | انتر ناسیونالېست | نړیوال |
| خود گرایی | اېګویېزم | ځانواله، ځانځاني |
| خودگرا | اېګوېست | ځانوال |
| جمع گرایی | کولکتیوېزم | غونډواله |
| جمع گرا | کولکتیوېست | غونډوال |
| اراده گرایی | والنترېزم | وېلاړواله |
| اراده گرا | والنترېست | وېلاړوال |
| الحاد گرایی | اتایېزم | بیدیني ـ بیدینواله |
| الحاد گرا | اتایېست | بیدینه |
| قوم گرایی | ـ | ټبرواله، کامولي |
| قوم گرا | ـ | ټبروال ـ پال |
| سمت گرایی | ـ | سیمه واله |
| اسلامگرایی | اسلامېزم | اسلامپالنه، اسلام پالي |
| اسلام گرا | اسلامېست | اسلامپال |
| چپ گرا | ـ | کیڼوال، چپی |
| راست گرایی | ـ | ښي اړخي، ښیواله، ښیلاسي |
| راست گرا | ـ | ښیوال، ښي لاسی |
| بنیاد گرایی | فندامېنتالېزم | بنسټواله، بنسټپالي |
| بنیادگرا | ـ | بنسټپال |
| شخصیت پرستی | (کیش شخصیت) | وګړه پالي |
| بیگانه پرستی | ـ | پردی پالي |
| خود پرستی | ـ | ځانپالي |
| عقب گرایی | رېکشنري | شاتګواله ـ شاتګ |
| عقب گرا | ریکشنیر | شاتګپال، شاتګی |
| موقع شناسی | اپورچونیزم (اپورتونیزم) | ورځچاري |
| موقع شناس (اپورتونیست) | اپور چونېست | ورځچاری |

| | | |
|---|---|---|
| نماد گرایی | سیمبولېزم | انځورواله، ښارمه واله |
| نمادگرا | سیمبولېست | پیلامپال، ښارمه وال |
| شکل گرایی | فورمالیزم | جولیزواله |
| شکل گرا | فورمالېست | جولیزوال |
| انسانگرایی | هومانېزم | بشر واله، وګړواله |
| انسانگرا | هومانېست | بشروال، وګړوال |
| فردگرایی | انډیویډوالېزم | ځانګړواله |
| فردگرا | انډیویډ والېست | ځانګړوال |
| پندار_انگار_گرایی | ایدیالېزم | انګېرواله |
| پندار_انگار_گرا | ایدیالېست | انګېروال |
| ماده گرایی | ماټریالېزم | توکیزواله |
| ماده گرا | ماتر یالېست | توکیز وال |
| پدیده گرایی | فېنومېنالېزم | پدیده پالي |
| پدیده گرا | فېنومېنالېست | پدیده پال |
| شتاب گرایی | تاچېزم | تلوارواله، بېړنواله |
| شتاب گرا | تاچېست | تلواروال، بېړنوال |
| سبك گرایی | سټایلېزم | سبکواله، لېلپالي |
| سبك گرا | سټایلېسټ | لېلپال |
| نفس گرایی | سولیپسېزم | ځانواله |
| نفس گرا | سولیپېست | ځانوال |
| تعالی گرایی | سوپریماتېزم | پورتواله |
| تعالی گرا | سوپریماتېست | پورتوال |
| جامعه شناسی گرایی | سوسیولوجېزم | ټولنپوهواله |
| جامعه شناسی گرا | سوسیولوجېست | ټولنپوهوال |
| روانشناسی گرایی | پسیولوجېزم | ساپوهنواله |
| روانشناسی گرا | پسیولوجېست | ساپوهنوال |
| نسبی گرایی | ریالتیوېزم | پرتلواله |
| نسبی گرا | ریالتیوېست | پرتلوال |
| نیستی گرایی | نېهیلېزم | نشتواله |
| نیستی گرا | نېهیلېست | نشتوال، نشتاند |
| عینی گرایی | ابجکتیوېزم | رښتیاواله |
| عینی گرا | ابجکتیوېست | رښتیاوال |

